# دغزلی تاریخی جغرافیه



دحدود العالم دتالیف دزرم کلین په مناسبت

# دغزنی تاریخی جغرافیه

لیکونکی محمد ولی (ځلمی)

دافغانستان ددمو کراتیک جمهوریت دعلومو داکادمی

داجتماعی علومو دمرکز خپرونه



# فهرست

| عنوان | مخ |
| --- | --- |




| عنوان | مخ |
|---|---|

## سریزه

دحدود العالم دجغرافیـــی د تالیف زرم تلین چیدغه جغرافیه دافغا نستان په شمالی بـــرخیگـوز گانان (جوزجان) کـې په ۳۷۲ هجری کی دابو الحـــارث محمد په‌امر چی دفریغو نیا نـو دامر اود سلسلی شخه‌وو لیکلـی‌شوی دیو افغـــان لـه نظره زیات اهمیت لری .

دغه اثر لومړی ځله دروسیی‌دمشهور پوهاند تو ما نســـکی دسفر په‌وخت کی چی‌په ۱۳۰۸ کی یی منځنی آسیا ته‌کړی وو اوخپل دوست ابوالفضل گلپایگانی ته‌یی د(الوسی الغ بیـــگ ) دموندلو سفارش کړی‌وو، دهغه‌دپلټنو او پوښتنو په نتیجه کی وموندل سو اوتومانسکی کـه‌څه‌هم نشرنه کړای سو خوبیا یـې

## غزنی

په ۱۳۱٤ هـ کی ښاغلی سیدجلال الدین تهرانی یوځل بیا دغه اثر پهعکسی ډول چاپ کړ خوځرنگه چیپی اغلاط ډیر درلودل نوپه ۱۳٤۰ کی دتهران‌دپوهنتون استاد داکتر ستوده دبار تولد عکسی نسخه اودمینورسکی (۱۸۷۷ ـ ۱۹٦٦) انگلیسی ترجمی متن تصحیح اوچاپ کړ.

ځرنگه چی زموږ د هیواد تاریخی اوتحقیقی ټولنو دد غه مهم تاریخی اومعلوماتی اثره سره هرکله زیاته مینه ښوده او متتبعینو دهغه دویلو اولاس تهراوړلو سره ډیره علاقمندی ښکاره کوله نودکابل دپوهنتون پهسفارش محترم استاد پوهاند میرحسین‌شاه یوځل بیا دمنورسکی انگلیسی ترجمه دبار تولد دمقدمی سره پهدری واړو لهاود دغه کتاب دخراسان او هندوستان په برخو کښی یی لازیات حواشی او مستند معلومات اضافه کړل اود کتاب اهمیت او مقبولیت یی ترپخوا زیات کړ.

ځرنگه چی دحدود العالم من الشرق الی المغرب مولف یو افغان‌وو نو دافغانی سیمو پهزیاته بیا دخراسان دمعرفی او حالاتو پهباره کی ښه معلومات‌وړاندی کوی خو بیاهم ددغه اثر ځینی عناوین اومتون چی خاص‌زموږ دهیواد په ځینو سیمو پوری اړه لری زیاتو جغرافیا یی‌اوتاریخی ځیړنو ته اړتیا لری او ځینی یی دتفسیر او تقریظ‌وړدی.

دغزنی اوغزنویانو پهخصوص کی که څههم ځینو پخوا نیو لیکوالو لکه دمجمل التواریخ‌والقصص ۵۲۰ـ۱۱۳۱ نو مور کی مورخ دعتبی تاریخ یمینی۴۲۷ـ ۱۰۳٦ دگردیزی زین ـ الاخبار ٤٤١ اود ابوالفضل تاریخ بیهقی ۳۸۵ ـ ۱۰۷۷

جلالي ،استاد خليل‌الله خليلي مرحوم استاد علي أحمد نعيمي، استاد محمد عثمان‌صدقي او هم ځينو ختيځ پيژندونکو لکه‌داليت دهندتاريخ‌دوهم ټوك ،دتركستان پر اثر باندي دبار تولد مقدمه چي‌پـه ١٨ـ٢٤ مخكي يې دغزنويا نو په‌هكله تاريخي معلومات وركړي كليفورډ ادمنډ بو سورت

Clifford Edmund Bowsorth The ghaznavids their Empire in Afghanistan and Eastern Iran 994: 1040

اوداسي نورو پرغزني ا وغزنويانو باندي يوشمير تحقيقي او تاريخي ليكني كړيدي خوځرنگه چي غزني اوغزنو يان دافغانستان په تاريخ، سياست‌اوثقافت كي زيات اهميت لري نوكه هرڅومره ليكني باندي‌زياتي وسي ورسره ښايي اود وطن دتاريخ، ثقافت اوملي حيثيت داعتلا ليوال يې ښه استقبالوي اود هغو پوهانو اودانشمندانو دپاره چي دهيواد تاريخ پرنوو أساسونو او مترقي معيارونو څيري دهغوي دپاره ددغي دوري‌جريانات او حواد ثيوه ښه گنجينه گڼله كيږي.

ددغه ضرورت پربنا همد لته‌دحدود العالم له‌نظره دغزني دځينو سيمو او قومونو دمعر في په‌منظور څه زياته رڼا اچو له كيږي :

دحدودالعالم من المشرق الى‌المغرب دجغرافيي په ٤٣ مخكي دغزني دمعرفي په‌هكله داسي راغلي دي:ـ(... غزني‌شهريست ببراكوه نهازه وبا نعمت سخت‌بسيار واندر هندو ستان است وازقديم ازهندوستان بوزه است‌واكنون اندر اسلام است و سرحدي است ميان مسلمانان وكافران وجاي بازرگا نان وبا خواسته بسيار ....واندر غزنين‌وحدود اين شهر كهاي كي ياد [illegible] اند با گوسفند

بسیار و گردنده اند برهوا وگیاه خوار ومراعی‌وازین ترکان خلخ اندر حدود بلخ وتخارستان وبست وگوز گانان بسیارند ....)

دهغه عصر دمقتضیا تو اوفرهنگی تفکراتو سره سم ځینو اسلامی جغرافیه‌پوهانو هیوادونه‌اوبشری ټولنی دخپل طرز تفکر اوذهنی تربیې له‌مخی داسلا می‌اوغیر اسلامی په‌نامه ویشلی لکه چی مسالك وممالك په‌دی‌هکله داسی لیکی ؛(... ودایره اسلام رابربیست اقلیم بخش کردیم؛- ونخست ازدیار عرب‌در برگرفتیم وآنرا اقلیمی نهادیم به‌حکم آن‌کی خانه خدای تعا لی آنجاست، وخانه کعبه ناف زمین‌است وخدای عزوجل آنرا درقرآن ام‌القری خوانده است. وام‌القری قصبه باشد که‌دیگر نواحی را به‌آن باز خوانند....) اصطخری بیا اقلیمو نه هم‌پر دغه معیار ویشی لکه چی د(مملکت‌مسلمانی‌مملکت روم ، مملکت چین، مملکت پارس، زمین هندوستان‌اوداسی نورو په‌نامه یی یادوی) حدود العالم هم‌دغه نظرساتی‌اوخپل‌وطن اووطنوال په‌هغه نامه چی‌دی یې نه‌غواړی نی‌یادوی اوپردی یی بولی دحدود العالم په‌عصر کی چی‌ځینی مؤلفین‌هیوادونه اوملتونه دمسلمانانو اوکافرانو په‌نامه ویشی نوددغه‌نظر له‌مخی زاولیانو چی دنوو ثقافتونو اوتهذیبونو دمنلو په‌مقابل کی ترنورو حساسیت او مقاومت ښودی اوترزیاته و خته‌پوری پرپخوانی تهذیب‌چی‌دهند اوافغانستان مشترك تهذیب ووپاته وودی یې دهند جز وگڼی او وروسته چی مسلمانان سول‌دی‌یې مځکه دمسلمانانو او کافرانو په‌منځ کی سرحد بولی‌افغانستان اوهند دډیری پخوا زمانی راهیسی پخپل منځ کی تهذیبی اوسیاسی روابط لرل

څخه چې ددوی اصلي ټاټوبي ووهاجرت نه‌وو کړی اوپه یور پ
کی‌خلك دډبری په دوری کــــی‌اوسیدل دافغانستان او هنـــد
مدنیتو نــه د۱۰ــ ۳۰ــ ٤۰ زره‌کاله دمیلاد دمخه په‌شاوخوا کی
لوړی درجی ته رسیدلـــــی‌وو أوپخوانی افغانستان ددغو مدنیتو
نو داتصال اوتمرکز کړی‌وه .

دانګلستان مشهور مور خ اوفیلسو وف‌ارنولد تائینبی ( تولد
۱۸۸۰ وفات ۱۹۳٦) چی څو کاله‌دمخه کابل تـــه‌راغلـــــی وو اود
افغانستان ځینی تاریخی سیمی، یې ولیدلی په‌خپله یوه مقـا لــه
اوکنفرانس کی چی دافغانستان‌تاریخی اهمیت‌په‌باره‌کی‌یې ورکړ
وایی:ــ (افغانستان یو دانشعاب‌خط دتشعشع کانون دفرهنګونو
څلور لاروه چی‌دزرګونو کلونـــو پــــه موده کــی هغه څه‌چی یــې
خپل درلوده اوهغه چی‌یې دنوروهیوادونو څخه اخیستی خـــپلـــو
ګاونډیو هند، ایران اونـــوری‌منځنی آسیاته رسولی دی.

مشهور فرانسوی پرو فیـــسر ژان ماری کزل Jean Mari Casal
په افغانستان کی دفرا نســـوی‌حفریاتو مشر (۱۹۵۱ــ ۱۹۵۷)
چی‌په منډیګك کی حفریات‌وکړل‌ددغه ښار پنځه زره کلنه بنه‌یې
داتو مرحلو حفریاتو په نتیجه‌کی‌رابر سیره کړه دغه‌ښار یو کیلو
مترمربع ساحه نیولـــــی وه اودعماراتو څخه یې معلومه سوه‌چی
په منډیګك کی یـــومنکشـــف اوعالی مدنیت موجودوو اوسیدوــ
نکی یې په‌کرنه پوهیدل او یــوډول غنم یې‌چی دکابل اوهند په
شمال لویدیځ سیمو کی مـــروج‌وه کرل‌دوی یوډول کوږ یـــوم
استعمالاوه چی دمفــرغ څـــــخه‌دتیشی په‌شکل جـــوړشـــوی وو
دډبرو ښایستو دانو څخه یـــــی‌څر ګند یږی چی‌دوی دګاو نډیو
هیوادونو سره تجارتی را کړه ورکړه درلوده دسرو اوسپینـــو
زرو لوښی چـــی د۱۳٤۵ کــــال‌دسرطان په میاشت کی دبــغلان
په‌ختیځی خواکی وموندل شول‌ــدا یست ایندوست مجله دخـــپلو

## غزنی

ددغی خزانی هنری مصنو عات دمندیگك دځلورمی دوری خاورینو لوښو دسوختی دښار دشوروی تاجکستان دجنوب د نماز گاه دڅلورمی دوری دحفر یاتو سره ور ته دی او څرگندیږی چی بدخشان دجنوب لویدیځی آسیا دکلتور او اقتصاد دکړیو په یو ځای کولو کی زیات اهمیت درلود دمندیگك پر خاورینو لوښو باندی چی دلویو حیواناتو بدنونه ، کیلی لرونکی حلقوی سترگی موجودی دی دغه ډول نقاشی دپارس، شوس په ښار کی تر بلوچستا نه پوری لیدلی کیږی دکندهار دمکشوفه آثارو څخه څرگندیږی چی دتاریخ د مخه ثقافتی ارتباط یې دانده او س دحوزی سره موجود وودمندیگك داخیری دوری شواهد دسند د حوزی سره ورته دی خاورین لوښی یې په تور ډیزاین جوړ شوی اود عشق پیچان دهنر یوه نمونه یې دهرپه دلوښو په شان پرمخ سته داسی معلومیږی چی دسیند دحوزی خلکو دمند یگك دخلکو څخه دغه هنر زده کړی او په افغانستان کی دتاریخ دمخه زمانی اوسیدونکی دهر په اوموهنجدا رو داوسیدو نکو سره فرهنگی او تهذیبی روا بط درلودل نو په دغه لحا ظ دغزنی ،زاول دسیمو فر هنگی روابط دگاونډیو سیمو سره مشترك وو اوغزنی دکلتور او تاریخی روابطو لرویه دخراسان یو ښار دی په اسلا می دوره کی دخراسان غربی ولایتو نود سیستان څخه تر زابلستان پوری دپردیو دسلطو دور کولو دپاره هر کله مقابله اومبارزه کوله که څه هم دعربو یو سردار عبد الرحمن بن سمره دحضرت فاروق اعظم دخلافت په دوره کی زمینداور او کابل ونیول خودزاولستان مخصو ص دغزنی اوسیدونکی یې تر سلطی لاندی نه سوه راوستلای اودری کاله وروسته دمعاویه دخلافت په دوره کی هغه وخت چی ربیع بن زیاد

زاولی حکمرانانو خپل سیاسی حیثیت منلای نه سو خو بیایې هم
په مدارا اودوستی دوی خپل معاونت او تهذیب ته رابلل او خراج یې
باندی مانه اواسلامی مبلغینو پښه یې په زاولستان کی په
آزادول.

دامویانو اوعباسیانو دشخړو په آشنا کی زاولیان په آرامی
اوسیدل اوزاولی انتبیل چه ...ربانو (انتپاله) باله دسبکتګین
اومحمود دیرغل وروسته وبهنداواتګ ته وتښتید چی دمقابلی دپاره
خپلی قواوی تجدیدی کړی .

برهمنی کابلشاهانو اوزاولی انتبیلانو ۱۸۰ کاله د هجرت
وروسته هم دعربو دسیاسی اقتدار په مقابل کی مقاومت کاؤ
په کابل ،زابل، تخارستان اوبلخ کی دبرهمنی اوبودایي
تهذیب آثار پاته وو .

دحدود العالم دغه نظر چی خلخ ترکان بولی دغور او خیړنی وړ دی
دتخارستان په هکله دخلخ کلمه چه په حدود العالم کی راغلی
ده صحیح بریښی خوله بل پلوه دغزنی او بست دنومونو په
مورد کی دغه کلمه بنایی خلج وګڼله شی لکه چه حرر، خزر،
حرز کیدای شی دخلج کلمه چه فهم او ویلو ته نژدی نه ده نومسلمانانو
جغرافیه لیکو نکو دپاره دابهام منبع ګرځیدلی وه داصطخری په
قول خلج دترکانو یوه څانګه ده چه په پخوا زمانو کی په هغو مځکو
کی چه دهند او سجستان په سیمو کی دغور ترشا پرتی دی
اوسیدل دوی دنعمتونو درلونکی دی ترکی بڼه اوکالی لری...

داچه حدودالعالم دغزنی سیمه هم دخلخ ترکانو داو سید لو
ځای بولی نودغه واقعیت یوځله بیا داخر ګندوی چه امکان لری
دخلج کلمه دی په خلخ اوښتی وی لکه چی محمد بن نجیب بکران
... نامه کی ... په دی هکله داسی وایی:- خلج دترکانو

پلرونه دي په اسلامي دائرة المعا. رف کی بارتولد د خلج په عنوان او تہی ، ډبليو هيگ دخلجي پــه عنوان کی دغه نظر تاييدوی .
داځکــه چی همــــدا اوس ددی سيمـــی د اوسيـــدونکو زيــا تــه برخه ځانونه غلجی ، غلـــزی، غرزی بولی دغه کلمه په عر بـــی کی غرج اوپه دری کی کــوهزادمعنی لری خوشحال خان ختټك هم خلجيان غلجيان بولی لکه چـــی وايی :

بيا سلطان جلال الدين پــر سرير کښيناست
چی په اصل کی غلجی دولا يـــــت وو

مشهور جغرافيه ليکو نـــکی ابراهيم بن محمد اصطخـــری د (٣٤٠ هـ )په شاوخوا کی ليکی :

(... خلج داترا کو يوه ډلـــه ده دترك جمع په فتحتينو) چـــی دپخوا زمانی راهيسی دهـــنـــد ،سيستان اوغور په ورشو گـــا نو کی اوسی دوی لويی رمی لـــری ژبـــه کالی اوقيافی يی اترا کو ته پاته کيږی .

يوډير قوی دليل چی دخلجيا نو اوغلجيانو ديووالی په هکلـــه ارائه کيدلای سی هغه دادی چی دواړو پښتو ويله چنانچی هغـــه خطی کتاب چی په فصيحه فارسی دسلطان سخی سرور دکراما تـــو په هکله په ملتان کی په (لك داتا)مشهوروو (مـــړ په ٥٧٧ هـ اود ډيره غازی خان په شاه کوټ کې ښخ دی) موجوددی په دغه کتاب کې دابو حامد الزاولی دغز نـــی دتاريخ يوحکايت دامام حســـــن صغانی (په ٥٧٧هـ کی په لاهور کی زيږيدلی اوپه ٦٥٠ کی مـــــړ دی.) دقوله داسی وايی .

کابلان شاه (خنچـــل) چـــی ديعقوبی په قول د ١٦٣هـ پـــــه

خلجیان پښتو ژبی‌ووچی همدوی‌اوس دغه غلجی افغانان دی .
هغه بیت دادی ؛

پەزمی گزنه ښخیدلو یك لــو یانو بویله لویا
کښته توربه  براغلوم؟ حمله تیز یــو په مــلا

معنی ؛ــ لویك دغزنی پــــه‌مځکه کی ښخ‌سو او لویکا نـــو خپله لویی بایلو دەځوزه خــــپل‌ هــتر ننگوم ته دتاز یانــو سره ملگر تیاکوه .

لویکان یوه شاهی کورنی وه‌چی‌په زابلستان ،غزنی، گردیز کې یې حکومت کاوو دکوشانیانو دعصر دوهمی مسیحی پیړی څخه یی موجودیت ثابت وو. (۱)

داچی خلجیان ترکان گــــنل‌کیږی دوه علته لری ؛ـ
اول داچی ساکان، کوشانیان‌اوهونان چی داموړ پوری غــاړی څخه باختر ،تــخارســــتان اود  هندوکش جنوبی سیمو تەراغلل اودوی پوونده آریائیان ووچــی‌دالتاي ترکانو سره یې مشابــه فرهنگ درلود اوشاید لسا نــی‌مشترکات یې‌هم ورسره درلودل کله چی دغه خلك‌دآریانا پخوانی‌افغانستان مځکی ته راغلل ددغی سیمی دتاجکانو اوپښتنو ســره‌میښت شول دجهان نامی دوینـا لەمخی رنگ‌اوژبه‌یې واوښته‌دبار تولد اوځینو نورو محققینو لـــه قوله دغه پښتانه غــــلـــــجی‌دهغو دبقایاوو څخه دی دپښتنو بل‌ښاخ چی ابدالیان دی‌هم‌ددوی‌سره نه شلیدونکی اړیکی لـری اوداً ودال، ابدل، هفتل، یفــتل‌نوك چی کلاسیك لیکو نکی یـې ایو تالیت Euthalite لیکی‌اود هندوکش دشمال ختیـځ د کافرستان سیاه پوشو طوایفوهم‌دوی تر۱۹ پیړی پــوری اودال بلل .

---

۱ــ تاریخ مختصر افغانســتان‌جلداول تالیف پوهاند عبد الحی حبیبی صفحه ۹۷

## غزني

بلږداچې دترك كلمه دهغه‌شهرت له‌مخې چې‌داسلامي لومړی پيړی په‌وخت كي يې درلوده عـربا نوهغه په‌لومړی ضمه ويله خـوپه داسې حال كي چې‌دافـــغانـی‌خلجيانو په‌منځ كي‌دغزنـی پـه شاوخواكي‌دغلجي‌طايفې‌څخه دتركي‌ياترك په‌نامه ستة اوخلجي يـا غلجي تركي بې په فتحتينوليكلې‌دی خودحروفو داعـرابو دنـه درلودلو په نسبت هغه دپخوانی‌زماني اوپه لومړی اسلامي پيړی كي دعربي رسم الخط درواج لـه‌مخې (ترك) په‌لومړی ضمه ويلي اوخيال يې وكړچې همدوی دی‌په‌دغه نسبت ترك نژاده وی خـو دغلجو تركي په فتحتينو ســـره‌دافغاني كو چيانو دلوی سلالـی څخه دی چې‌دشاه نامي دملحقا تو په‌روايت شمير يې‌پنځو سو زرو ته رسيدی اود زابلستان پـــه بيلو سيمو كي‌اوسي اوپه‌ژمي كي دسند شاوخوا اوتخار ستان تـه‌كوچيږی اوډيری رمې لري .

په پښتو خبری كوی اوبشپړافغاني ثقافت لـــری دغلـــجي كوچيانو ډير پخواني ټاټو بـی‌ته غرجستان ويل كيدل معـجم البلدان دغرجستان حدود داســی‌بيانوی . (۱)

(غرشستان بالفتح ثم‌السكون‌وبشين معجمته مسكوره و سيـــن مهمله و تاء مثنا ه فوق‌واخر نون‌وهيی ولايت هرات فی غر بيهـا واغور في‌الشر قيها ومروالرود عن شماليها و غزنته عن‌جنوبها. )

ترجمه ؛

شمال ته‌يی مرو رود جنـو ب ته‌يې غزنی لويديځ‌ته يې هرات ختيځ ته‌يې غوردی ...)

غر حستان د در و كلمـو غـر ـ گرځ (ځای) ستـهان ـ ستـان (دمكاني ظرف لاحقه) څخه جوړشوی اوپه پښتو كـــی دا ډول سفكسې نومونه بيخي ډيردی‌لكه‌غر، لويديځ، زاولستان اوداسې نور

## غزنی

پښتو (ځ) عربانو کله په «ج» کله په «ش» اوکله په «س» اړولی غرجستان اوغر شستان یې ځینی جوړکړی دی په پاړسو کی «ځ» په «چ» اړول شوی غرچ (غرچستان) ځنی جوړ سوی .

دغرځ اوغر ځستا ن اوښتی اشکال دادی : غرچ، غلج، غرجستان ،غلجستان، غر چ، غرچه ،غرجکان، غر چستا ن (غرش) غرشستان، غور شستان، غرشستان، غر ششتان، غر س، غرسستان، خلج ، خلجستان ، گرجستان ،خرجستان، غرج الشار اوداسی نور .

نو په دی لحاظ هغه څوك چی (غرځ) ته منسوب دی غر ځیان بلل کیږی چی همدا اوس دیوی لوی افغانی پښنی نوم دی او په دغه نامه یعنی (غرځ) کی بیا وروسته ډیر تعریبو نه اوتغیرو نه راغلی دی چی ددی تغیرو نو اصلی علت هم دپښتو (ځ) توری دی اوخلجی غلزی ځینی جوړ شوی خلجی اویا غلجی قبایل په کوچی اوځای توگه تراوسه په همد غه سیمو کی اوسی دخپلو روا یاتو اوملی سر گذشتو نو له مخی ځانو نه غلجی پښتانه بولی اوکه ددغو څخه احیانا دځینو قبا یلو ژبه اوداسی نور خصوصیات پاته سوی وی بیایی هم ارتباط ،دوستی اود قومولی علایق نه دی ځینی شکولی دقومی اوملی اتحادمزی یې ټینگی ورسره ساتلی دی

غرځستان دډیرو تا ریخی زمانو راهیسی آزاد اوخپل واك وو دهخا منشیانو یونا نیا نو، کوشا نیانو ساسا نیانو په وخت کی یې پوره خپلواکی درلوده اود اسلام تر راتلو پوری یی

## غزنی

کلاگانو په هکله وایی ؛

کنون عجبتر ازان است فتح غرجستان

که شد به‌دولت آمر سپاه اورا رام

یکی حصاری کش ناز برستار، نمود

بناش کیوان بالا وسنگ آئینه نام

زمینش آهن‌و فولادوبرج گوشه کوه

بسان بیشه‌سر برج او پراز ضرعام

اصطخری وایی ؛

( غرج الشار دارای دو شهر است، یکی بشیر ودیگر سور مین وهردو در بزرگی متقار بند ودران دومقامی برای‌سلطان وجود ندارد. (وشار) ذمه‌مملکت به‌وی نیست داده میشود .

در قریه به‌نام بلیکان مقبر است

## غزنی اود تسمیه وجه یی:

غزنی دافغانستان یو زوړ او تاریخی ښار دی‌اود زابلستان
مرکز گڼل کیدی (وادیم‌ماسون) دشوروی اتحاد لرغون پوه لیکی
چی دغزنی ولایت دکیندنو پـه استنادپدی سیمه‌کی‌له(۱۰۰۰۰۰
ـ۲۰۰۰۰۰) کال مخکی انسانانوژوند کاوو چه هغوی په‌سمڅوکی
اوسیدل اود ښکار په‌ذریعه بـه یې خپله غذا لاس‌ته وروړله (۱)
ډیر پخوانی متن چی په‌هغـه‌کی دغزنی دنامه ذکر سوی دی
هغه اوستا دی چی دشپاړ سـوتوکرانو ځمکی دذکر کولو پـه
لړکی دغه ښکلی اوپاکه مځکـه بولی په لومړی (فرکارد) کـی
یوه مځکه درکخره) Kokhra
په‌نامه په دیرلسمه مرحله کـې یادوی.
بطلیموس یې په‌پارو پامیزادکی‌د Zaka (n)—Ga گازاکه په‌نامه

## غزنی

راوړی اوهغه دکابل دشمـــال وخواته یوزر ستا دیا(ســـتا دیاد فرسنگ مساوی یایو ســـاعت پلی تگ )بولی .

مشهور فرانسوی پرو فیـــسرموسیو بن ویسنت دختیځو ژ بو په‌نامه په ژور نال اســـیا تـــیك Journal Asiatique کـــی دغزنی ذکر کړی اوهغه یـــــې د(گزاکه) بنارسره چی‌بطلیموس ذکر کړی یوشی بللی چـــی نوم‌او محل یې‌دواړه‌سره تطبیقیدلای سی دغه پوهاند دهغو لغتو نـــو له‌مخی چی په‌سغدی ،پارتی، او (دیانی) ددین دمتونو په پارچو کی مطالعه سوی‌دی وایی دغزنه اوغزنی دکلماتو په ریښه کـــی‌دغزن GZAN لغت موجود دی چی دخزینی او یادفـــینی معنـــالری .

داومی پیړی په لومړیو وختو کی هیون تسانك مشهور چینـــی سیاح کله چی دهند څخه دپښتیا (جنوبی) دلاری زموږ هیواد تـــه راغـــی دغزنی علاقه یې‌د تسو کوـ ته Tsoukata په نامه یـــاده کړی اودده دیادابنتونو په‌ضمن‌کی غزنی د (هوسی نا) (واهو سالا) Ghaznika= Ho (K) — Si(k) — na

دنومو نو په یادولو سره‌دتوجه وړدی چی دزیا تـــرو څیړونکو په عقیده دهوسی نـــابنار همدغه غزنی اوهوسالادهغه په‌شمال لویدیځ کـــی‌دی(۱) وروسته مقدسی غزنی دتثنیه په‌شکل غزنین راوړی ابو عبدالله یعقو ب‌حموی چی په رومی یعـــقو ب مشهور دی ۵۷۵ ـ۶۲۶ معجـــم البلدان او ارشاد الاریب لمعرفت الا دیب یی‌نوموړی آثار دی‌غزنی‌دغزنین په‌نامه راوړی دی.

دآل ناصر د وخـــت لیکوالو غزنی‌د (غزنین) په‌نامه ذکـــر

عزم کی دارد که‌غزنین را بیارا ید بروی
رای‌کم دارد که بر تخت پدرگردد مکین؟

حکیم سنایی صاحب دغزنی‌دنامه دصحت په اثبات کی د تصحیف دصفت څخه کار اخلی‌او وایی؛

عرش و غزنین بنقش هر دو یك است
گر چه غز نین رفیع تر فلك است

غزنی اوزاول دډیری پخوازمانی څخه دزاولی قبا یلو داوسیدلو تاریخی ټاټوبی وو یوشمیر خیرونکی عقیده لری چی زاولی قبیله دوروستیو کو شانیانو یوه مهمه ډله وه‌چی ددوی په‌نامه یی‌دهستو گنی ځای زاول‌یادسوی دی‌دزابل شاهانو (کیدا ره، شیر، گنگ خاس، [illegible] ، [illegible] )څو ډوله اوپه دری خط سیکی پاته‌دی چه [illegible] الحط یی‌راول او په براهمی هندی خط يي جاړله [illegible] د غو پاچا هانو پرسکو باندی ددوی‌بڼی نقش سوی چی‌ورا جگی پزی، غټی سترگی، تیکی غاړی‌تکړه بدنونه، پراخ باړخو گان اوتندی يي درلودل چی دغه‌ټول کړه وړه اوس دزابل اوغزنی په کوچیانو ترکو، سلیما نخیلو ،توخو، خروټو، هوتکو نا صرو اونورو غلجی قبایلو کی دورا یه‌لیدل کیږی .

ددغو زاولی شاهانو بقایا داسلام ترفتوحاتو پوری لاهم‌پاته‌وو او کله چی‌اسلامی فاتحان په اوو م‌قرن‌کی راغلل نو دوی ځینی مسلمانان سول په‌بامیان ، غوراوغر سستان کی‌دغزنو یانو تر [illegible] پوری لاهم پاته‌وو.

## غزني

نامه‌کی یې‌داسی معرفی کوی:ـ

(... وروسته غزنی ته ولاړم غزنی دمشهور مجاهد سلطان محمود سبکتگین ښاردی چې یمین الدوله یی لقب اود لویو پاچا هانو څخه وودی څوځله‌دغزادپاره هند ته‌ولاړ ښارونه او کلاگانی یې وپرانستی دمحمود قبرهم پدی ښارکی دی‌اوزاویه لری دښار لویه برخه ویرانه پاته ده‌اوکوچنی برخه یی‌آباده ده‌دغزنی هوا ډیره سړه‌ده اوسیدو نکی‌یی‌په‌ژمی کندهار ته‌ځی کندهارلوی اود برکته ډک ښاردی خوزه هلته‌نه‌ولاړم دغزنی څخه تر کندهاره ددرو ورځو لاره‌ده دغزنی‌دباندی‌یو کلی وو چې‌موږ یې دکلاپه‌بیخ کی‌دیوی ویالی پر غاړه ځای‌ونیوی دهغه ځای امیر چې‌مزدك آغا نومیدی زموږ عزت وکړ اودهغه ځای څخه دکابل په‌لوری وخوځید... ) (۱)

# جغرافیا اود هغې څانگې

جغرافیا یاجیو گرافی geography یوه لاتینی کلمه‌ده چې (جیـــو) دمځکې او (گرافی) دمځکـــې دحالاتو په‌معنی اخیستله کیږی.

جغرا فیا په‌عمومی ډول پـــرلاندنیو څانگو ویشلی شوی‌ده؛ـ ریاضی جغرافیا، فزیکی‌جغرا فیا، اوبا یوجیو گرافی (دژوند یـــو شیانو جغرافیا ).

ریاضی جغرافیا دمځکې شکل، حرکتو نه اولمر ته‌یې مو قعیت بیانوی چې دنقشی څخه زیـا ت‌کار پکی اخیستل کیږی .

فزیکی جغرا فیا دفیـز یــو گرافی physiography په‌معنی چې طبیعی حادثات بیانوی هــم‌راغلی چې دغه جغرافیا دمځکـــې ساختمان لکه ساحه ،سیند، آب‌اوهوا، جیولوجی. اوشنو گرا فی متر ولـــوژی او داســـی نـــورخصو صیتونه څیری .

ددغه تقسیم څخه پرته بلـــه‌جغرافیا دبشری جغرافیا په نامه هم یاده چې دمځکې پر مـــخ داوسیدو نکو دبیلو اوضاعـو او

## غزنی

انسان یوحیوان دی چی ځا نیی دجغرافیا دمحیط سره عیار کړی اوپه ځینو معیارونو سره یی تطابق ورسره کړی دی. ده دخپلی پوهی په واسطه دمځکی سطح پهخپله گټه استعمال کړی مځکی یی داستفادی وړ گرزولی غرونه یې هوار کړی دمځکی دمخ اومځکی لاندی منابع یی په کاراچولی دی چیموږ دغو ټولو فعالیتو نو ته بشری جغرافیا هم ویلای سوچی پر بیلو برخو لکه سیاسی جغرافیا، اقتصا دیجغرافیا، تاریخی جغرافیااوداسی نورو څانگو ویشلی سویده چیدغه جغرافیا هرکله دانکشا ف اوترقی پهخوا روانه ده.

فنیقیان لومړ ی خلك وه چیدجغرا فیا سره یی پهعلمی توگه سروکار درلود دوی د(هومر)دزمانی دمخه دتوری بحیری او مدیترانی څخه داتلانتیك پهلوری سفرونه کول دافریقی ددماغی څخه راگرزیدل اوهغو سواحلوتهدرسیدلو پهتلاش کیوو چی وروسته کلومبوس امریکی تهعملی کړ اوبحر هندته راغلل .

سیاحینو او جهانکشا یا نولکه مشهور یونانی مورخ (هیرو دوت) اوسکندر په خپلو سفرونوسره جغرافیا ډیره غنی کړه په همدغه وختکی یونانیکښتیوان(پیتر) شمالی لوری ته تر آیسلینده پوری د خپلو کشفیاتو ساحه پراخه کړه او ۲۷۶ کاله دمیلاد دمخه (ارا توسنیز د طول البلد لهمخی دمځکی نقشه جوړه کړه اوددغه وختوروسته دمځکی

نو په باره کی پوره معلو مـا ت ومومی. په دوهمی میلادی پیړی
کی پتولو می یو یونانی منجـــم دجغرافیه دعلم په خصوص کی۸
ټوکه کتابونه ولیکل چی دزیاتو پیړیو دپاره داستفادی وړوو.
په ۱۳ او ۱٤ پیــړی کی دمارکوپولو سفر ونو جغرافیـا وی
کشفیاتو ته پوره پراختیا ورکړه او په ۱۵ پیړی کی دامریکی کشف
په جغرا فیاوی انکشافاتو کی یو بل بریالی گام وو اود راوروسته
دیرشو کلونو په مده کی دگرینلیند څخه ترکیب هارن پوری سفرونه
وسول دمجیلان په واسطه بحرـالکاهل پی سو اویوه کبنتی گرد
آورده پردنیا راوگرځید لـــه دختیځی افریقی، عر بســـتان ،
ایران ،هند سواحل ولیدل سول او په بحر هند کی ډیری جزیری
وموندلی سوی .
دهند دشمال لویدیځ سواحلو درسیدلو اود آرکتیك منطقو تـه
دمعلوماتو دپه لاس راوړلو دپاره توجه وسوه .
د۱۷ پیړی په لومړیو وختــوکی هالینډ یان یوی مځکی تـــه
راورسیدل چی (نیو هالینډ) یې نوم باندی کښیـــښود او اوس
استر لیا نومیږی .
کپتان کــوك په څـــپلو دروسفرونو کی دبحر الکاهل زیاتی
برخی وموندلی .که څه هم د۱۹ پیړی ترلومړیو وختــو پـــوری
زیات اکتشافی سفرونه وســول خو بیا هم دپنځو څخه څلوربرخی
جزیری لانه وی کشف ســـوی یوازی دمرکزی آسیا اوامریکـــی
په باره کی لږ ابتدایی معلو مات موجودوه. افریقه دتاریکی قاری

## غزنی

بورتن، سپیك ،زیونگ فور ت‌اوپه آسیا کی دینگ هسبینـــد نیونهندی سفرونو زیا تـــــی‌سیمی وموندلی خوبیاهم تر ۱۹ پیړی پوری لا دجـغرا فـیاو ی‌انکشا فاتو په‌هکله دو مـــره بریالیتو بونه په نصیب ســوی‌نه‌وه ترهغو چی شمالی قطب تـه په ۱۹۰۹ کی (پیړی)او جنو بی‌قطـــب ته په ۱۹۱۱امید سـن ورسیدل .

په ۱۹۲۰ او۱۹۵۰کی‌دجغرافیه‌پوهانو په‌شمالی آسیا، افـریقی کانادا اونورو زیاتو برخو کــې‌جغرا فیاوی مستند معلومات په لاس راوړل او وروسته دجنو بی‌افریقی اوعربو یوشمیر نـو رو سیمو ته سفرونه وسول دبحرونو اوآب‌اوهوا په‌باره کی هـــم علمی معلومات راټول‌سول هوایی‌نقشو دجنوبی اومرکزی افریقی دځنگلونو او الاسکاد غرونو پــه‌انکشاف کی‌پوره مرسته وکـړه په‌پای کی جغرا فیاوی تولنو لکه‌دپاریس د ۱۸۲۱ او د

# دغزني جغرافياوي موقعيت

غزني دکابل دجنوب لـو یدځ په ۱۳۵ کیلو متری کې دختیځ طول البلد په ۶۷ـ۶۸ درجو ۳۰ـ۴۲ دقیقو ۲۷ـ۳۶ ثانیـو اود شمالی عرض‌البلد په ۳۳ درجو ۱۹ـ۴۴ دقیقو او ۴۵ثانیو کې واقع اود بحردسطح څخه ۲۲۲۰متره لوړدی دغه ښار دار غنداو اوترنك دآبریزی په‌ویش کـی‌راغلی اوپریوی لوړی برخی چی کلابا ندی را گرځیدلی اوبرجو نه‌لری جوړسوی دی دښار پرشاو خوا دپخوانی لوی‌خندق آثارلیدل‌کیږی چی‌دمدافعی په وخت کې به‌داوبو څخه ډکیدی .

مسالك وممالك دابو اسحـق‌ابراهیم اصطخری تالیف دایرج افشار په‌اهتمام ۱۹۲ مخ‌کی‌غزنی‌دسیستان دښارونو په‌لړ کـی راوړی .

ابن‌حوقل وایی :ـ

## غزنی

دمدصب پهطول اودله٥ پهعـرض کی واقعدی د (الاطوال) په کتاب
کی همدغزنه طول اوعرض همداشانی ذکرشویدی . دغزنهځخه تر
بسته دسجستاناول حد څلویښتفرسخه فاصلهده د(اللباب)مولف
وایی بلق دیوه تکی په(ب)دل په فتح اوپه اخیرکی یی قاف دغزنه
دسیمو یوه سیمه ده اووایيچی؛غزنه دهند دښارونو شـروع ده
ابوالمجد موصلـی په (مـزیلـالار تیاب) کیوایی .

غزنه دخراسان پهاړخ کـیدهند دلومړنیو ښارونو څخه دی
ځرنگه چی دخراسان اوهند پـهمنځ کی سرحدی نوسروبی یـې
سختدی(۱) ځکه چیغزنیدگومل پرلویی لاری حاکم دینو سوقـ
الجیشی اهمیت هملری اوپهتوله۱۷ـاو۱۸ پیړی کـی دهـند د
دروازی پهشانی پیژندل سویدیاوهم دډیرو پخوانیو زمانو څخه
یوشمیر فاتحین اومها جر تونـهدغیلاریځخهتیرشویدی (۲)
دبشاری پهقول غزنـی څـلوردروازی دبـامیانـو ، سیستان
گردیز اودرسیر پهنامه درلـودیخودغزنی اوغزنویانو داثرلیکوـ
نکی پهقول دغزنی پخوانی ښـارپهدرو برخوشمالی ،جنوبلویدیځ
او لویدیځ باندی ویشل سویوواوپه هرهخوا کـیـیـې دروازی
درلودی چی دبهلـول دروازی،دبازار دروازی اوکینگ دروازی
پهنامه یادیدی دغه اثر په۲٤ مخ کی دغزنی دښار موقعیت پـه
خصوص کیداسی لیکی :ـ

(... هغه ښار چی دکابـل اوکندهار دلاری پرسر واقعدی او
آبادییې دډیرو او شوړ یدلـوماتو خښتو څخه ځرگندیـږی او

## غزني

وروستيو حفرياتو ښخه معلوميږي چی دغه دغزني زوړ ښار داوسني ښار شمال ختيځ جنوب ختيځ اولويديځ ته پروت وو او تلخگـزار دشاوخوا ښخه ترشا لج اوآرزوچي مخصوص دسلطان شهاب الـدين غوري قصر هم پکي راتلي ترراملك اود هك پوري رسيدي ددغـي مخروبي برخي دعماراتو دتادابو نو ښخه چی آثار اولويي خښتـي راوتلي دي داسي ښرگند يږي چی دغزني زوړ ښار همدلته آباد وو دغزني دشمالي اوجنوبي بـرخي درقبي ښودل که ښه هم مشكـل كاردي خو دحفرياتوښخه ښرگند يږي چي په يقيني حدس سـره اوسني روضه چي دسلطان محمود مزار پکښي واقع دي دغزني ددوو منارو دافغان شال ترخرابـو او ناصر الدين سبكتكين تر كشـك پوري چي همـدا اوس دعـا دل سلطان قبر همدلته سته دسلطان ابراهيم دمزار اود هغه دشاوخوا ويرانو اوسلطان مسعود شهيـد ترمزاره چي دبهلول كلا دباغو نو په منځ كي واقع دي ترده خدايداد دسردار تر كلا اود سردار دكـلا ښخه ترقلعه نو دسرريك پيرزاده ښخه دشاه خواجه احمد تربـا غه اوقلعه آهنگران چي پخوا په هغه كي خداديان اوسيدل اود او سني عيدگاه ښخه دمسعودي تر كشكه اود آزاد خان دكلا ښخه دچهـــل بچگانو تركلا اوشاوخوا يي تركوي آهن پوري دغه ټول دغزني پـــه زاړه ښار كي راتلل چي اوس د زاړه ښار پر ويرانو دختو كلاوي اوباغونه آباد سوي دي .

## غزنی

مونټ ستیوارټ الفنستن پـه‌خپل‌اثر ایندااکونټ آف‌د ی‌کنګدم آف کابل په ۱٤۱مخ‌کی دغزنـی‌په‌هکله داسی لیکی :ـ

( دغزنی ښار اته‌پیړی دمخـه‌دداسی یوی امپراتوری مرکز وو چه‌له دجلی څخه ترګنګا اوله سردریا څخه دفارس ترخلیج پـوری آرت وو اوس‌دغه یوکوچنی ښار ګرځیدلی دی چه‌نژدی پنځلـس سوه کورونه لری اود ښارلمن یې‌دیوالونه ،نه‌لری...) (۱)

دپای مناورونو پخوانی سیـمه‌چی دغزنی داوسنی ښار دشمـال ختیځ په‌دری کیلو متری‌کی واقع‌ده او پــــر دوو بــــر خو مسعود قصر اود سنجر غـــونه‌ی‌چی دمناورونو اوسړك شمال تــه واقع‌ده ویشله‌شوی ځکه چی کـوشکونه ،قصرونه، باغونه ،حمامو ـ نه لری دغزنی زاړه ښار اطـلاق‌باندی کیدلای سی .

دپرو فیسر پومباچی په عقیده‌ددریم مسعود قصر شایددابراهیم دسلطنـت اودده دزوی دریـــم‌مسعود په‌وخت کی جوړ شوی وی دی وایی دغه قصر د خـــوارزم‌شاهیانو تر وختـه آبادوو اومغو ـ لانو هغه ویران کړدپای مناورونو سیمه په‌پخوانی زمانو کی داتــو چینو په‌واسطه اوبیده اوددغـــوچینو څخه لاتراوسه ځینی ستـه چی دغزنی دروضی مځکی او بـه‌کوی اود زنه خان دبند څخـــه

# دغزنی آب او هوا

غزنی دخپل طبیعی موقعیت په وجه چی لوړ ځایونه او هواری دښتی لری مختلفه آب او هوا لری جغتو، ناور، مالستان، جاغوری یې په لوړو مقر، قره باغ، یوسف خیل، ناوی یې ږځوړو سیموکی شمیرلی کیږی هواری سیمی یی تاکلی موسمونه لری دوبی یې ملایم سپرلی او منی یې لږ څه سوړ او ژمی یې بیخی سوړ دی .

دغه سیمه چی د (۱۵۰۰ څخه تر ۲۵۰۰ متره پوری د بحر د سطحی څخه لوړه پرته ده په هغی کی کابل غزنی هزاره جات او بامیان او د بدخشان ولایت زیاته برخه شامله ده آب او هوا یی بالعموم سړه وی ژمی یې ډیر سوړ او واوره لری چی ځینو برخو کی یې د تودوخی درجه منفی ۳۱ـ۳۲ سانتیگرادو پوری رسیږی او په دوبی کی ډیر لږ واقع سوی دی چی د تودوخی درجه دی یې ۳۰ سانتی گرادو ته ورسیږی .

بایستی این هردو موضع‌یك هواداشتی بلکی تمامت اقلیم اول و ثانی وثالث که‌به ارتفاع آفتاب نزدیك اند گرم‌بودی و دیگر هاکی بعدی دارند سردبودی اماچون تغیر هواجهت فراز ونشیب زمین است هرجابلند است سردست وهرجا پست است گرم میباشد .)(۱) په غزنی کی‌دقوس د۱۵ څخه بیادحوت تر ۱۵ پوری په‌وقفو اوریا کیږی‌ددغی سیمی ځینی هوار ځایو نه دهند دموسمی بارانو ترتاثیر لاندی راځی اوکله کله یی حاصلاتو ته‌زیان رسوی .

دهند موسونی هوا چی په‌خپلی سرلیکه کی په‌بیلو نومونو یادیږی اود هندختیځی جنوب‌مرکزی ،جنوب ختیځی برخی زموږ دهیواد تر شمال ختیځو سیمو پوری په‌ګنهو اوپنډو وریځو سره دسرطان ،اسد، سنبلی ترمیاشتو پوری په‌وقفو بارانی‌کوی دغه ډول،هوا زموږ په ختیځو ولایاتو کی دنایل په‌نامه پیژندله کیږی نایل یاموسونی هوادبحری اووچی هوا دتودوخی دتفاوت څخه پیدا کیږی اودهواپه عمومی‌جریاناتو کی فاحش تغیر راولی اوځرنګه چی وچه دبحرپه نسبت‌ژرتودیږی اوتودوخی په‌ډیر ژور والی اوعمق زیات نفوذنه‌شی‌کولای نوهغه وخت‌چی مځکه په کافی اندازه تودوخی واخلی‌نو په‌خپله سطح کی‌تودوخی پیداکوی اوخپله شاوخوا تودوی اود هوادفشار دلږوالی باعث ګرځی‌زموږ

---

۱ـ نزهة‌القلوب تالیف‌حمدالله‌مستوفی صفحه ۹ـ۱۱ چاپ‌تهران ۱۳۳۶

حمدالله مستوفی نزهة‌القلوب په۷٤۰هـ ۱۳٤۰م‌کی دتاریخ گزیده

## غزني

هیواد په طبیعي ډول داقلـــیم پیژندني، مځکی دعوارضـــو او جـــوړ ښت لـــه مـــخی پر لسو منطقو ویشل کیږي چــــي دوی‌منطقی یې په‌تحت‌الحاره او یا هغی ته ورڅرمه منطقی اوپاته‌یې په معتدله کی راځي هغه منطقــی چی‌حاره‌ته نژدی‌دی په‌دوو ټاکلو منطقو ویشل کیږي لــو مـــړی‌دهندوکش دجنوب سطح مر تفــع چی کښته او ارتفاع یې لــږده دطبیعی پلوه جنو بی افغا نستـــان بلل کیږي اونوری دری‌چی یو له بله بیلی اود سلیمان غره ختیځی ته واقع دی په‌هغو کی کابل، کنر، کرم خوست اوکندز شامل د ی دغه لویی دری په‌اصل کی حـــاره‌منطقی ته ورڅرمه‌دی اود طبیعت له‌مخی دسیند دحوزی سره په‌یوه‌ساحه کی‌واقع‌دی . اود موسونی افغانستان په نامه یادیږي .

چی وړوکی منطقی یی کنـــدراوګومل او لویه یې کابل اوکنـــر ګڼل‌کیږي مرکزی افغـــا نستا ن‌داقلیمی شدت اوزیاتی ارتفاع په نسبت دواخان سره شباهت لری‌اوپه خپلو لوړو غرو ټوله‌مرکزی ساحه نیسی دشمال لویدیـــځ اوجنوب ختیځ (کلات اوکند هـــار) دغه مساوی السطــح ســـاحی یې په‌یوه سویه ۱۸۰ متره اوجنو ب خواته تقریبا ۱۲۰۰ اوختیځ تـــه‌څرمه (کابل غزني) ۲۴۰۰ متـــره لوړوالی لری .

# دغزني غرونه

پرغزني باندي دشمال لويديځ اوجنوب لويديځ څخه لوړ غرونه راګرځيدلي دي چې په هره برخه کي يې غرونه دهغه محل په نامه ياديږي دغو غرونو غزني ته بيضوي شکل ورکړي دي .

دغزني مشهور غرګل کوه نوميږي چې داوني دکوتل (۸۰۰ متره لوړ) څخه راشروع کيږي اود جنوب لويديځ لوري ته څي چې دهلمند جنوبي ،جنوب ختيځې سلسلې غرونه دکجکي ترختيځه اود بغرا دبند ترشمال ختيځ پوري تړل پکي راځي ددغه غره اوږدوالي دبابا اوسياه کوه ترغره زيات دي .

دغه غر دناور په ختيځ کي زيات ته ارتفاع لري اولوړه څوکه يې هم په دغه ځاي کي ده چې ۴۵۹۵ متروته رسيږي .

دارغنداو رود چې دناور دجنوب لويديځ سيمې دلوړې برخې څخه سرچينه اخلي دغه غر پردوو لويو څانګو ويشي. يوه دارغنداو لويديځه سلسله جوړوي چې کوه مزار اوددغه ځاي څخه دکندهار شا مقصود اوخاکريز ته رسيږي بله څانګه يې دمقر، شاجوي، کلات اوترنك لويديځې سيمې نيسي اود ښار صفا تر شمال ختيځه او کندهاره رسيږي.دغه غر لکه سياه کوه ځنګلو نه نه لري په ځينو برخو کي يې دخنجك دولاني ارچي ونې ليد ل کيداي شي .(۱)

---

۱ـجغرافياي عمومي افغا نستان مولف محمداکبر شورماچ ۶۰ مخ دکابل چاپ ۱۳۵۰

## غزنی

دغزنی په ختیځ اوشمال‌ختیځ مخصوص دجغتو په‌سیمه کـــی دگرانیت‌ډبری‌شته دمقردلویدیزی‌سلسلی غرهم گرانیت ډبری‌لری دټول جاغوری اوور ځرمه‌سلسلی‌غرونه گرانیت‌لری چی‌لوړوالی‌یی د۳۰۰۰ څخه بیاتر ۴۱۰۰ متـــروپوری رسیږی دهغی سیمی څخه چی دترنك اوارغنداو سیندو نه‌تیریږی اودغه سیمه دمـــقر او جـــاغور یو په‌منځ کی‌پرتـــه ده‌د(کـــرته شیس) آهکی دبـــرو څخه جـوړه ســـوی‌ده داور دودفیلا یت دمتحوله نوعی ډبـری چی‌دناور دښت په‌شمال ختیځ کی‌دتیلی لرونکی غرونو پـه شانی ځرگندیږی ،دناور ددښت پـــه‌شمال کی‌دری اور غورځـو نکـی مخروطی اوکواتر نری لید لـــی‌کیږی چه دلاوا اوبزلیت زیا تـی ډبری پکی لیدلی کیږی .

دمالستان غرونه چی‌دهرسنین‌دډبرو څخه دی‌لوړی څوکی یـې ۳٤٥۱ متروته رسیږی دمالستان‌دره په‌انتی کلاین اود هرسنیـــن اوتر یاسیك درسوباتو په عـــصر کی‌لیدل کیږی اوځرنگه چـــی معلومات لرو دکانو اوصنایعـــو وزارت دمالستان دولسوالی پـه جنوب کی دډبرو دسکرو شواهد په‌لاس راوړی اود راایستلو لاری چاری یې‌لټولی کیږی (۱)

د جاغوری یوغر هـــم دخپلی‌سیمی جاغوریو په‌نامه یادیږ ی اود گرانیت دډبرو څخه جوړسوی‌دی لوړه څوکه یی ۳۷٦۰ متروته رسیږی ډیری دری‌اوکږ لیچو نه‌لری.

هغه کوتل‌چی دمـــالستان اوجاغوریو په منځ‌کی واقـــع‌دی (تبر غنك) نومیږی دغه کـــوتل‌دسنگ ماشی په‌شمال لویدیځ کی دجاغوریو په‌مرکز کی واقـــع خوصعب المرور نه‌دی.

# دغزني سيندونه

دغزني زيـات سينـدونـه دهندوكش دجنوبي برخي اودناور دلوړی سطح څخه‌سرچينه اخلـی‌دناور لوړه سطح چی۷٦۰۵ كيلو متره مربع ساحه لری دغزنـــی‌دلويديځ په ۹۵كيلو متری كـې واقع‌ده دجهيـل اوږدوالی يـــې پنځوس اوپسوری ۱۳ كيلومترو ته رسيږی (۱).

هغه لوی سيندونه چی دناوردشمال څخه سرچينه اخلی :ـ

۱ـ دجلگی دره چی اوبه يـې‌دچك وردك څخه تيـريـــږی او وروسته دلوگر دسيند په نامــه‌يادیږی دغه سيند دكابل دسيند دمرستيا لانو څخه شميرل‌كيږی.

۲ـ دگرما وسيندچی دهيلمنددمرستيا لانو څخه شميرل‌كيږی.

---

(1) CENTRAL ASIA
Par t II
Calcutta 1871

۳ــ دغزني سيند چې‌دناور دخواك څخه منبع اخلي دغزنـــي دشمال لويديځ په ۱٤ميلي كــې‌ددرو كوچنيو شيلو ديوځاى‌كيدو څخه ( دشمال ختيځ خوا څخـــه‌دگردن مسجد شيله اود جنـــوب لويديځ خوا څخه دباريـــك آ ب‌شـــيله اود شـــمال لـــو يد يځ خوا څخه دشملتو شيله) جوړيږي‌اويوه پراخه سيمه خړوبـــو ي دبرود فوټ Broad foot انگريز دليكونو له‌مخې غز نـــوى سلطان محمود دبندونو جوړو لو يه عزم داشيلې سره يوځاى كړې اود غزني اوسني سيند ځيـــني‌جوړ سو په‌وچكالي اودوبى كــې ددى سيند اوبه لږيږي يـــعني‌سوريي شلو فوټو اوژوروالي يې دوو فوټوته رسيږي داوبـــــو چټكوالي يې په‌يوه ثانيه كـــې پنځه فوټه وي په‌ژمي او پسر لي كې كافي اوبه لري او ځرنـــكه چې په‌دوبى كې‌يې اوبه لږيږ ي‌نودكرهنې دپاره زياته‌استفاده‌نه ځيني كيږي درياى گــل‌بـــوري،تالاب حسيني درياى قره باغ‌يې مرستيا لان دى (۱).

٤ــ دباتور دناوى سيند چـــې‌دهيلمند دمرستيا لانو څخه گڼل كيږي .

هغه سيندونه چې د نـــاور دځيني لوړي سطح څخه سرچينـــه اخلي :ــ

* * *

سهراب، قياق، كرك، واغــزچې تول دغزنى په‌سيند گډيږي.

هغه سيندونه چې د نا ور دجنوبي لوړى سطح څخه سرچينه اخلي .

مالستا ن او جاغوري چـــــې‌وروسته دارغنداو سيند ســـره گډيږي .

## غزنی

هغه اوبه چی دسید کرم ا وگردیز څخه راځی دگردیز سینـد ځینی جوړیږی چی شلګر ته نژدی‌دشمالی لوری درامك سیند اوبه ورسره ګډیږی .

هغه سیندونه چی دسرواندی‌غره دلویدیځ خوړی څخه منـبع اخلی دنهاره ( پالتـو ) سیـــندمرستیا لان ګرځی .

دپالتو سیند دخواك څخه‌راځی‌اوآب استادی ته تویږی .

ځینی سیندونه چی په دو بی‌کی زیات وچیږی د(زیړی غره ) څخه سرچینه اخلی اوآب استادی‌ته توئیږی په‌وازه‌خواکی دسنګی غرونه اومربو طی سلسلی یی دغزنی دجنوب اوآب استادی پـه منځ‌کی داوبو ویش کوی.

دمالستان رود :ــ

دما لستان دره چی دختیـــځ‌څخه لویدیځ‌ته اوږدیږی دغه دره دوی موازی سلسلی دشمال څخـه‌وجنوب ته جوړوی اجـر ستان‌او روزګان یی لویدیځ‌تـه واقع دی‌دمالستان سیند چی دقو شنـــك دسیمی څخه سرچینه اخلی‌ختیځ‌لوری ته حرکت کوی لومړی د جاغوریو سیند اوبیا ارغنـــدا ب‌سیند ته تویږی دمـا لسـتا ن دسیند په اوږدوالی په‌څوځایونوکی سړك تیرشوی خو دجاغوریو اوالمتو په کوتل کی دسیندفاصله‌دسړك څخه

## دغزني دمقر آب استاده :

دغه ولاړي اوبه دبحر دسطحې څخه ۲۱۳۰ متره جګوالي لـــري چې دختيځ طول البلد په ۶۸ درجو ۲۴ ثانيو اود شمالي عرض البلـــد په ۳۲ درجو ۳۰ دقيقو ۳۵ ثـــانيو کې واقع دي اود مقر دجنوب په څلويښت کيلو متري کې پرتې دي آب استادې ته دغزني، معرو ف خيلو، پالتو اونهاره سيندو نـــواوبه توئيږي دغزني دمـــرکز ی ساحې په مقايســـه ددغـــــی آب استادې ټوله ساحه ديوي حوزي حيثيت لري اود کوچني جهـــيل په شکل څرګنديږي .

دمقر دآب استادې شمال تـــه ګاره، جنوب ته يې دناوي ولسوالي ختيځ ته يې ديله لويديځ تـــه يې دکازيو کلي پروت دی .

دمقر دآب استادې د محيـــــطاوږدوالي ۶۰ کيلو متره دی چې دغزني دښار څخه ۲۱۵ کيلو متره کښته واقع دي ددغوولاړو اوبـــو خوند ډير مالګين دی چې انسانان اوحيوانان يې نه سي چيښـــلای

## غزني

داچې ددغې آب استادی اوبه‌ولې توروی دی دتبخیر په‌عمل
اړه لري په‌دی برخه‌کې چې‌او به‌ځای پرځای ولاړی‌دی یوه اندازه
یې په‌رسوبې ډبرو کې‌نفوذ کوی‌دمځکې لاندې اوبه جوړوی اویوه
زیاته اندازه اوبه یې هواکــــې‌تبخیر کیږی دتبخیر عمل‌دحوزې
په قاعده کې دمالگو انــدازه راټولوی اوهره ورځ په‌اوبو کــې
دمالگې اندازه لوړه بیایی‌نوځکه‌دغه ولاړی اوبه مالگه‌لري دکرنې
او چښلو دپاره گټوری نه‌دی.

دغې آب استاد ی ته‌دسیمــې‌نادر مرغان راځې‌اوهمدلته هگې
اچوی اوچوچ کوی دمرغانوښکاریې ډیر مشهور دی (۱)

دسلطان بند :ـ

دغزنی بند ته ورڅرمه واقــع‌دی اوبه چــې په‌دی بند کــې‌سره
یوځای کیږی د ناهور دشــــمال‌لویدیځ برخې څخه راځې دجغــتو
دسیمې دخړوبولو ورو سته دسرچینې څخه په۳۵،۵ کیلو متــــره
فاصله دغه بندته ننوزی ددغـــه‌بند ددیږال اوږدوالې په لــــوړه
برخه کې ۲۲۰ متره اوپه کښتــه‌برخه کې ۹۰متره دی لوړ والی‌یې
۳۲مترو ته رسیږی دغه بنددشل‌زره جــریبــه مــځکــې پــه
شــا وخــوا کې خــړوبوی دبندکاســه ۳۰۰۰ مــتره اوږ دوا لی
۵۰۰ متره پسور اود شلو ملیو نومکعب مترو اوبو ظرفیت لري .

دغزنی بند (بند سراج ) :

دغه بند دغزنی دښار دشما ل‌لویدیځ‌په ۷۵، ۱۸ کیلو متــری
کی واقع اووایی چی دســــلطان‌علاوالدین په وخت کی تخر یــب
سوپه ۱۳۱۸ هـ ق کی دامیـــرحبیب الله سراج الملت والدین‌په

داوبو ظرفیت ۱۹ ملیونه مکعبه‌متره دی چی‌دغـزنی دښـــار او خواجه عمری پنځوس زره جریبه‌مځکه خړوبوی لوړوالی یی د ٤٠ ثخه تر٥٠متروپوری اواوږدوالی‌یی ۳٠٠ متره راځی .

دزنه خان بند ؛

دابند دغزنی دښار ختیــــځی‌خواته ۲۱کیلو متره لیری دزنـه خان په علاقه داری کی موقعیــت‌لری لومړی دغزنویانو په دوره کی‌جوړ اود چنگیز یانو په وخت‌کی خراب ســو پــه ۱۳۲٤ـ او ۱۳۳٥ کال کی‌یی دجوړو لوکاربیا شروع سودبند دذ خیـــــری ظرفیـــــت یــو ملیــون او دوه‌سوه زره مترمکعبه اټکل ســوی دی او ۲٠٠٠٠ جریبه مځکه‌اوبوی

دخروار بند ؛

دغزنی شمال ختیځ خـــوا ته‌دلوګر دبند ترڅنګه جوړ ســوی اوږدوالی یی ۱۳٠متره اود اوبوظرفیت یی ۱۹ملیونه متر مکعبه اټکل سوی‌دی .دابند په تخمینــی‌ډول ۲٠٠٠٠ جریبه مځکه خـړو بولای سی (۱).

دسرده بند ؛ـ

دابند دغزنی دښار دجنــو بـختیځ په ۳۷کیلو متری کی‌پروت اود هغی‌برخی‌ثخه‌چه‌دجلګی سیندديوی تنګی وادی ثخه چی‌راسته اوړخ ته‌یی یوه کوچنی غـونډ ی‌اوچپه اړخ‌ته یې‌دغره راو تلـــی برخه‌واقع‌ده تیریږی مـو قعیت لری دغه بند دجلګی دسیند دژمی داوبو اوسیلاوونو ذخیری کـولودپاره چی‌دغزنی داندړو دسا حی

دمخلوط شخه دډیرشو مترو پـــه لوړوالی جوړسوی لوړه برخه یی ۴۶۰ متره اوږدوالی په کښتنـــی برخی کی ۲۰۰ متـــــره او د پورتنی برخی سیوریې لس متره راځی دسردی دکاسی دبند ظرفیت ۲۵۹ ملیونه مترمکعبه اوبه راځی ددغه بند دخروجی نل اوږدوالـــی ۱۶۵ متره سیوری ۲ متره ارتفاع یی لس متره راځی چی دپخته کاری په ډول داوسپنی لرونکی کـا نکریت شخه په یوه ثانیه کی د ۵۰ مترو مکعـــبو اوبو په ظرفیـــت جوړ سوی دی دبند ترشایو پـــوخ پول چی غزنی دکتوا ز ســـــره مونښلوی هم ستـه داهـــم بایـــد څرګنده سی چی دجلګی ورشـــو دسرده دبند په برخه کـــی ۲۷۵۰۰ هکتاره دکښت وړ مځکه نیســی ددغی جملی شخه ۲۰۴۰۰ هکتاره مځکه دذخیری داوبو یوزر هکتاره مځکه دجلګی دسیند داوبـــو د جریان اوپاته برخه یی دکاریزو په اوبو خړوبیږی دعمومی کانالو - نو اواوبو لګولو دشبـــکو پـــه جوړولو سره هـــر کال ۱۷۶۷۴ - هکتاره مځکی په شاو خواکـــــی خړوبیږی اود ۱۰۷۸ هـــکتا ره نوری مځکی دپاره به کافی او بـــه برابری شی .

د ۶۴۰۰ هکتاره مځکی شخـــه دبند دظرفیت دمحدودیت له کبله په متناوب صورت سره به استفاده وشی اصلی کانال یی ۹۰۰ متـــره متره مکعبه اوبه ظرفیت لـــری په داسی حـال کی چی دچپی غاړی کانال ۳۰ کیلو متره اوږدوالی او په یوه ثانیه کی د ۸ مترو مکـــعبو اوبو په ظرفیت دتوزیع شبکی لری دراستی غاړی کانال ۲۰ کیلومتره اوږدوالی او په یوه ثانیه کـــی د۷ مترو مکعبو اوبو په ظرفیت او ۴ و۷۳ کیلو متر و په اوږدوالـــی داوبو لګولو شبکی لری ددی بلان

## غزنی

زاکبنانو سره وکیندل سی ددغی پروژی لگښت ۳۱۴ ملیونه افغانی او ۵،۵ ملیونه ډالره پیش بینی سوی وو دذخیری دبند دمصارفو په نظر کی نیولو سره دیوه هکتارنوی مځکی مصرف د۴۵ زرو افغانیو په شاوخوا کی راځی که دغه پلان دمرتبی نقش سره مخی ته ولاړ سی او په سل کی د۵۰ حبو باتو اونورو نباتاتو او په سل کی شل دمیوو او سبزیو او په سل کی د۳۰ نورو نباتاتو په کښت اوکرلو سره ددغی پروژی ټــو لــمصارف به په پنځو کلونو کی دهغه دخالصو عوایدو څخه برابر سی ددغی پروژی عمومی قیمت ۹۵۹ ملیونو افغانی ټاکل سوی او ددغی جملی څخه ددریم پلان تر پــا یــه پوری یی ۵۷۶ ملیونه افغانــی مصرف سوی وو (۱)

---

(۱) نظری به جغرا فیــای زراعتی افغانستان مولف پوهاند حمیدالله امین صفحه ۱۰۶ طبع سال ۱۳۵۲ .

# دغزني كرهڼه

ځرنگه چې پرغزنی دشما ل اولویدیځ اوجنوب لویدیځ څخه لوړ غرونه را ځرخیدلی او غزنی‌ته پەورځرمه برخوکی دغەغرونه دومره ارتفاع نەلري نودتودوخی‌پەموسم کی‌یې دواورو څخه سرونه لځیږی اود واوری داوبومنبع نەسی گرځیدلای نوځکه یی دمځکو یوه برخه پەکاریزواوکوهیا نو اوبیږی اوپه کال‌کی د۵۰۰ ملی‌مترو اوربنت اندازی‌لرلو سره یی‌بیا همځکەمرطوبه کیدلای نەسی.

دهوا شناسی‌دستیشنو دراپورلەمخی دغزنی اقلیمی شرایط پـه کال ۱۳۵۲ کی‌داسی تثبیت سوی‌دی.

| ستیشن | شمالی عرض‌البلد | شرقی طول‌البلد | ارتفاع په متر |
|---|---|---|---|
| غزنی | ۳۲ ـ ۳۳ | ۲۵ـ۲۸ | ۲۱۸۲ |

## غزني

دغزني ځيني برخې دبحر دسطح څخه تر ۲۰۰۰ مترو هم لوړې دي دزيات سړوبي، دبرينومځکو دکافي اوبو اوعصري مواصلاتو په انکشاف کې دطبيعي خنډونو موجوديت اود اوږدو ژمي درلودلو په نسبت اود فعاليت او کار دزميني دنشنه والي له کبله يې کرهنه په کافي اندازه انکشاف نه دی کړی اوهغه نباتات پکښې کرل کيږي چې طبيعت يې دسړي هوا اولنډ فصل سره مطابقت ولري.

دغزني دکرني وضع په زياتو برخو کې ديو فصله او عنعنوي کښت لرلو له کبله مثمره نه ده اودکال په غير مساعدو موسمونو کې يې حتی کله داوسيد ونکو خوراکي مصرف هم نه شي برابر يدلای.

دغزني دنفوسو زياته برخه په کرهنه او مالداري لگيا ده د مالداري ده محصولاتو له غوښې، پوستو نو، غوړيو، وړيو، اوداسې نورو څخه يې دهيواد داقتصادي بنسټ دپياوړتيا د پاره زياته استفاده کيږي اود ځارويو شميريې په اوسط ډول هر کال (۱۳۲۱۶۱۰) راس ته رسيږي.

دغزني دکرني وړ ځمکه په سلو کې ۶۳( ۵۷۷۳۰۰) جريبه آبي اوپه سلو کې ۳۷( ۲۵۹٤۵۰)جريبه ديمه ده څرڅايونه يې ۳۹۰۰ کيلو مترو مربع ساحه نيولي ده.دغزني دعمومي ساحې په مقايسه څرځايونو لوپه سيمه نيولې ده چې دغه سيمه زياته

غزني

مځکه په چينو اوبيږي .

دغزني دبزګرانو شمير اودمځکي پراخوالي اوپه دغه پوري مربوطو نورو حالاتو څير نه د۱۳٤٦ کال دسروي په اساس داسي تثبيت شوی‌ده .

د غزني کليوالي نفوس(۲٤۰۲۱۰) تنه دمځکي لرونکي شمير (٦٥۰۳۰) تنه دکرني وړمځکه يي په هکتار سره ۱۸۳٤٥۲ دنفراومځکي پمنځ‌کي‌نسبت۷٦،۰دملکيت دسا حي وسطي يي ۲،۷۹ (۱).

په غزني کي غنم، جوار، وريجي‌اوربشي ،مشنګ، باقلي په‌زياته اندازه کرل کيږي اوهغه عوايدچي پياز ،پتاتي ،شلغم، کدو ، بادرنګ‌سبزي‌جات اونور ترکاري‌برابروي داطمينان‌وړدي اوکرهنه يې دپرا ختيا په‌لورده، دغزني‌آلو بخارا ډيره مشهوره ده د دهيواد په داخلي اوخارجي بازارونو کي تاوده خريداران لري اود غزني زاول اوکندهار په‌خوړوکي‌داسي لږ شيان سته چي‌دغزني آلو بخارا دی‌نه‌په‌کي استعماليږي.

په تجارتي لحاظ دانګورو اومڼو بيي يی‌په ملي‌عوايدو کي درشت قلم جوړوی نو دهمد غه‌کبله په خواجه عمري اونورو ورځرمه سيمو کي سردرختي اوانګوري باغونه مخ‌په‌زياتوب‌دی.

ديوه اټکل له‌مخي په عمومي‌توګه هرکال‌دغزني څخه ٤۰۰۰۰ منه وچ کشمش ااو ۲٥۰۰ منه‌بخارا خارج ته صادريږي .

په اوسط ډول دغزني دميوو‌توليدات په‌کال کي ٥۰۹٤٤۰۰ منو ته رسيږي (۱).

# دغزني اقتصادي اهميت

غزني دډېر ي پخوا زمانې‌راهيسې اقتصادي او تجار تــي
اهميت درلود دچنګيز دېرغــل‌دمخه دافغانستان يولوي فرهنګي
او اقتصادي مركزوو دهند، پارس‌ماوراء النهر، چيني تر كستــان
،ايران لوې تجارتي اوترانسپور تي كار وانو لارې باندې سپــرې
وې اوهمدا شاني دمديتراني اوهند په‌منځ كې‌يوه تجارتي لويه
لاره وه .

غزني دكــندهار ،پكتيا اوشمالي ولاياتو دلارو دتقاطع‌لوی
مركزو دغزني څخه يوه كوچياني‌لار چې دلويد يځې لارې پــه‌نامه
مشهوره وه دناور تردښــتو اوهزاره جات تر ليرو سيمو رسيده
دوريښمو لويه تجارتي لاره هــم‌دغزني دځينو سيمو څخه‌تيريده.

غزني دښه زيات عمر دپــاره‌يومعمور اوآبادښاروو دابن‌حوقل
په قول ددغې سيمې په ټولــوښارونو كې ترغزني آباد او پــه
مالونو ډك ښار ليدلې سوی‌نه دی‌اوهند ته دورتګ لويه ګذر ګاه
ګڼله كيږی .(٤٥٠) مخ صورت‌الارض ( ١ ) . دغې ګزرګاه‌سوق
الجيشي‌او نظامي‌اهميت هم‌درلودچنانچه دغزني دسيمې يو زيــات
شمير افغانان دسبكتكين اوزا بلي‌محمود سره دهند په‌لويو تړوكې
ددغې ګزرګاه څخه دملګرتيــا اومــر ستــي ويــاړ نــي درلودې
دغزنوي دورې مشهور مورخ ابــونصر محمد بن عبدالجبار العتبي
په‌دې هكله داسې وايي :ــ

---

( ١ ) ابولقاسم محمد بن‌حوقل‌بغدادي دعربو مشهور سيا ج او
جغراافيه پوه‌مشهور اثريي صورة‌الارض دی اود څلورمې پــيړ ی

(پشتو نها مانند اجل یا بـه‌مثل شیران گرسنه بردشمن مـی تاختتند کوتلهارا مینور دیدنـــدمانند برق درجنگلها می‌آمـــدند وهمچون آهو برکوه هامیبرامدندومانند سیل دردره‌ها ونشیب ها می‌افتادند ودر اوقـات وقـــوع‌مهمات با سبکتگین همرا هـــی داشتند ...)

دصورت الارض مؤلف وایـی‌دالپتگین داستیلا سره دد غـــه ښار سیاسی روابط دهند ســره‌ونه شلیدل اوتجارت‌ته یې‌ډیـــر تاوان ونه رسیدی .

مسالك وممالك دغـــزنـــی دتجارتی اهمیت په‌باره کی‌داسی لیکی :ـ

(... وهمه باغ وبو ستـا ن‌وآب‌روان دارد، الاغزنی که بـاغ وبوستان ندارد ورودی در میان‌شهری توانگر وپر تجارت تر از غزنی نیست به‌حکم آنکی فرضه‌هندو ستان است ..) (۱)

څرنگه چی غزنی په‌شمال کې‌دکابل اوپه جنوب لویدیځ کـــې دارغنداو اوهیلمند سره مو ښتی‌وونو تجارتی اهمیت یې زیات‌وو اوشاوخوا یې خلجیان دلویو رموسره گرځیدل اود غزنی څخه یـــې لوی تجارتی مالونه وړل ر ا وړ لدغه ښار ددوو لویو تجارتی‌مرکز ونو یعنی کابل اوبامیانو ســره‌ارتباط درلود .

یو ایتالوی پلتونکی چی څـوکاله دمخه یی‌په‌غزنی کی‌حفریات کړی پخپله یوه مقاله‌کی لیکلی ؛ فوچر (Facher) فرانسوی

پلتونکی په‌دی نظریه دی‌چی په‌پخوانیو او منځنیو پیړیو کی‌هغه لاره‌چی له سیستان څخه ترهغـــی‌کلی والی‌لاری‌پوری چی دهندکش

## غزنی

وارخ ته‌تیریده داوسـنی لاری‌څخه چی‌پر هغی کندهار اوکابل پروت‌دی توپیر لری اوپه هغـی‌هیڅ اړه‌نه‌لری ددی نظریه‌له مخی مسافرین دارغنداو په‌ناوه کی‌ترپایه تلله اوبیا دغرونو په‌منځ‌کی دغزنی لویدیځ ته د(بوکان) دری‌ته‌را تیریدل اود کـابـل‌دناوی اوسنی لاری ته‌رارسیدل. (۱)

دچنگیز یانودیرغل دمخه‌غزنی‌دکرنی او مالداری مهم منابـع درلودل دآسانو، اوښانو . رموپه روزنه اوحیوانی تولیداتو په پراختیا کی یې‌ښه شهرت درلوددغزنی دکاروانو اود حمل‌و نقـل وسـیلو تـر درو پـیړیو دمخـه‌دداخلی اوبین المللی تجـار تـد پراختیا اومواصلاتی لیکو له مخی‌دومره اهمیت درلود لکه‌نن چـی یی‌ریلوی اوکښتی چلونه لری نـودغزنی، زاول اوهیلمند مدنیتونه ددغو سیمو پرزراعتی اومواصلاـتی تولیداتو بناوو چنانچه ددغو سیمو دکرنی سیستمـو نـه‌اوبندونه په‌ټول ختیځ‌کی ساری‌نه درلود اوملی مشرانو هم دخلکـودذهنی اوجسمی استعدا دونـو دثقافت په‌لوړتیا او مـلك پـه‌آبادولو کې څرنگه چی‌ښایی کار اخیست اوهسك‌تهذیبونه اوجهان‌کشایی په‌وجود راوستی وی.

که څه‌هم ارسطو (۳۸٤ـ۳۲۲ق‌م) پخپل کتاب سیاست ( اوم کتاب اوم‌فصل) کی دانسـان اوطبیعی محیط په‌رابطه کی‌لیکی :ـ

دسړو سیمو خلك په‌عمومـی‌صورت اود اروپا اوسیدو نکـی په‌خصوصی توگه قوی اوغښتلـی‌دی خوپوره مهارت اوکافی‌ذکاوت

نه‌دی اود سیاسی لانجو شـــخـــه‌خر نگه چی ښایی وتلای نه‌شی(۱).

خو دغه نظردغزنی ، زابـــل‌هیلمند دسیمو مدنیتو نواو ثقافتونو ضعیف کړی اود هغه‌عصرافغانستان دنن پـــه شـــانـــی داستعماری دباوونو په اثرداسی‌لاس اوپښی نه‌وو ملی‌یو والـــی اومشترك نصب العین مو جـودودداخلی اړتیاو درفـع د پـــاره صنـعتی او حـر فـتی تولیداتوکفایت کاوو دتجارتی معاملا تـو دپراختیا ثقافتی اوکلتوری تماسونو دموجودیت له‌کبله داسی‌کمال اومهارت نه‌وو چی په‌هـــغه دی‌ددغو سیمو اوسیدو نکی نـــه پوهیدل دهغی زمانی تـــار یخـــی‌آثار اومصنو عات لکـــه‌دښـــکلو قالینو، ټغرونو نخی اوپشمـــــی‌منسو جاتو، وریښمو، چرمګر یو کفشدو زیو، ریخته ګر یو،فلزی‌لوښو، کاشی کاریو، رنګو نـــو کاغذ، اسلحو جوړولو مصنوعاتواو مهارتو نه‌ددغی ادعاډیر ښـــه ثبوت کیدلای شی.

دهغی دوری غزنی اوشاو خواسیمو یی نه‌یوازی دداخلی اړتیاو درفع کولو دپاره مالونه تهیه‌کول‌بلکه اضافه اومازاد تولیدات یې لکه پوستینان، وریښمین اووړین‌ټـــو کـــران ،ټـــغـــرو نه ا و فـــلـزی شیـــان د بـــا ندنیوسیمو ته‌هم صادرول دهمدغـــو ذهنی اوجسمی استعدا دونو لـــه‌مخی ووچی دغزنو یانـــو دوره زموږ په‌تاریخ اوفرهنګ کـــــې برجسته مقام لری‌اوغزنی دسیمی دهیوادو نو نه‌یوازی تجار تـــــی‌اوفرهنګی بلکی دلویو سیـــا سي

## غزنی

دسوداګری اوترانز یتی قافلی‌په‌حرکت اوسفر کی‌لیدلی کیدی .
په شپاړسمه پیړی کی‌دهنـدڅخه دکندهار اوغزنی پـرلار د
اوښانو لوی کاروانو نه اوقافلی‌لیدلی سوی چی هندی ټوټـــی،
کشمیری، شالونه اونور جنسونه‌یی ایران اومرکزی آسیاته وړل
دافغا نستان په اقتــصا دی‌وضع کی‌افغانی‌کوچیانو نه‌یوازی
دمالونو روزلو بلکه دخار جـــی‌تجارت له‌لاری هم‌اهمیت درلـود
دوی دموسمونو په‌بدلون سـر ه‌خپلی مینی‌بدلولی دغه‌کار اساسا
دری علتونه لری :ـ
۱ـ دهند ،منځنی آســـیا اوایران ترمنځه تجارتی لویی لاری
دافغانستان څخه تیرید لی.
۲ـ تجارتی کاروانو نه په‌هغه‌لاره اوهغه وخت تلل‌چه‌په کال‌کی
دوه ځله ددوی ګډی‌اورمی‌تللی .
۳ـ ددوی به‌هم‌شمیر زیات اوهم‌به‌تل وسله وال وواوډیر زړه
ور اوجګړه ماروه نودلارووهونکواوغلوڅـخه ددفــاع اود لاری ذ
خنډونو دلیری کولو دپاره تــل‌پیاوړی وو. (۱)
په‌را وروسته کی غزنی یـــوازی‌ترانزیتی اهمیت درلود دایـران
اومغلو حکومتونــــو دواړو ددی‌تجارتی لاری دساتلو دپاره ددغی
سیمی غلجی کوچیان اوځایــــان‌ګمارلی وه. اوددوی څخـــه‌یې د
تجارتی کارګرانو اود کاروانــــو دمحافظانو په څیر کــاراخیست.
دغو حکومتونو دتنګسو په وخت‌کی‌دوی په‌عسکری برتیـــو کـــی

## غزني

اوتجارتي ترانزيتي لارو اهميت يې لږ څه کم کړ اود افريقي دلوی وچې شاوخوا بحري لاره بې خطره او مصئونه وبلل سوه برسيره پردې بحري لاره دوچې دلارې څخه په لکښت کې ارزانه وه داو لسمې پيړۍ په پای کې اورنګزيب دوچې سرحدونه وتړل او دغه اقدام يوه بله ضربه وه چې دهندوايران اومنځنۍ آسيا دکاروانو پرمخ حواله شوه.

ددې وروسته په هند کې داخلي اړو دوړ پيش شو اود افغانستان دلارې ترانزيتي مالونو وړل اوراوړل بندسول دغوناوړو حالاتو که ديوې خوا څخه دکندهار اوغزني دتجارتي لارې اهميت لږ کړ خو په مقابل کې ددغې سيمې داوسيدو نکو ملي شعور اود قوم ولي حس يې راوپاراوو اود اجنبي سلطو په مقابل کې دکندهار او غزني خلکو بريالي اوقاطع رول ولوباوه چې په نتيجه کې دميرويس نيکه اواحمدشاه باباملي حکومتونو تاداو کښيښنول سو.

دميرويس نيکه دقيادت په دوره کې ددې سره چې ددې دوطن دآزادۍ ملي ننګ اوناموس ساتلو دپاره زيات متوجه وو خو څرنګه چې دتجار ت اوملي اقتصاد په اهميت پوهيدی نودراکړې او ورکړې په معاملا تو کې يې سهولتونه راوستلي وولوی لارې اوتجارتي کاروانونه يې دهرډول بلوڅې څخه په امان ساتل دغزني کابل او کندهار ترمنځ دداد او ستدمعاملات زيات کيدل دميرويس نيکه وروسته دده دزوی محمود په عهد کې همدغه اصل بنه وپالل سو

یانو داصفهان دمحاصری پهوخت‌کی‌شکره پرخلکو پهبیخی زیـا ت
قیمت پلورلی‌ده اودخلکوداحتیاج‌څخه یی بده‌استفاده کړی‌ده نـو
دمحمود خوش بینی کرار، کـراوروڅخه اوبنته پهدی وخت کـی
محمد نشان دمحمود پهنامـــه دهالند یانو څخه دپیسو طلب وکړ
اوهغوی یی‌تهدیدکړل خو هالنډ‌یان چی پوهیدل محمود درونـد
سړی‌دی اوداسی هیلی دده دملی‌غروراو شهامت څخه‌منافی کاردی
نوځکه یی دهغه‌سره پهمقاومـت‌شروع وکړه اوآخر هالنډ یانو د
(میانجو) پهواسطه چهدغه سـړی‌دمحمود پیر اومرشدوو ځـا نونه
محمود ته ورسول محمود هغـوی‌دمیلمنو پهخیر ونازول اود پیسو
طلب‌یی ردکړ اوڅو نفر، محافظین‌یی ورسره کړل چـی خلك پـوه
کړی تجارت آزاد دی اوداســـی‌واقعات ددوهم ځل‌دپاره بیاتکرار
نشی خودخارجی نمایند گیو پـه‌ارسال اومرسول اوغیر مریـــی
اجرا آتو باندی‌یې هرکله نظارت‌اومراقبت کوی.

داحمد شاه‌بابا دټولو اکمنـــی‌وروسته دده دزامنو دپاچاهیو په
وخت کی دانگریز امپریا لیـــزم‌افغانی حـدودته راورســـید او
کورنی جنگونه شرو ع ســـول‌الفنستن لیکی:ــ پرلـــه پسـی
کورنـــیو شخـړو ســوداگــر ی‌تـه ســخت زیـــان ر سو لی
دی‌پهدی چهلاری‌یی خطـر نـاکی‌گرزولی ټول تجارتی کاروانو نه
دجنگ کوونکو دیوی یابلی ډلی‌دچوړولو دپاره خلاص پرینبنو ل
سوی‌دی کهدانه‌وی‌نودهند، تاتاربلو چستان په منځ‌کی دکـــابل
موقعیت اوکشمیر دمتصر فـــی‌درلودل دتجارت دپاره ډیـــری
گټی لری. ) (۱)

دافغا نستان او منځنی آ سیامسئله چی دفرید، اچ، فیشر اثر دی ددغه اثر په٦٢مخکی دپووندهوو کوچیانو دتجارت په هکلـــه داسی لیکلی :ــ

(... دوی دآسیا یی سوداګروپښوانی نمایند ګان دی چیدچین ،هند خراسان اوبخارا پهمنځ کییې تګ اوراتګ کاوو ددویدحمل ونقل وسیلی اوښان اویا بوګانۇچی ډیری بارول ددغو تجارا نو کاروا نونه تل مسلحوو دوی پــهکالکی دوه ځله دبخارا اواندوس په منځ کیتګ اوراتــګ کــا وودلاری پهمنځ کی ډیر ځله دچــور چپاولو نو قتلونـــو اوډول ډولتهلکو سره مخامخکیدل اودځینو ځخه یی بیله مقابلی او مقاتلی پهرشوت ورکولو ځانونه خلا صــول خو دحیرانی خبره داده چیځرنګهدغو پښوانیو تاجرانو دنـــوی او عصری تجارت دوضعسره ځانونهعیارول... دوی دبرطانوی هنــد دسیمو ځخه مسلح نه تیریدل اوپه پټه یې پهاندوس کی خپلــه اسلحه پریښو دلــه اوښـــان اوفا میلونه یی دپنجاب میدانو ته بیول بیایی خپل مالونه پهریلویکی وړل اود هندو ستان لــو یو ښارونو بمبیی اورنګون پــور یبهیی رسول اود مارچ په میا شت کی بهبیرته خپلو فامیلو نو تـــهراتله اووطن تهبه رسیدل ددغه ځای ځخه یی بیاخپل کاروا نـونهکابل، بخارا اود لویدیځی آسیـــا ښارونو ته تړل ...) (١).

دشاه شجاع (١٨٤٢ــ ١٢٥٨)په زمانه کی دافغانستان ســـره دانګریزانو مستقیم ارتباط موجودسو ١٨٠٩ دسیاحت، تجــارت او داسی نورو په نومو انګر یزا نوافغانستان ته لاره ومونـــده اود

## غزني

پیړی په‌شروع کی دکندهار اوغزني په‌لار ددوو زرو اوښا نو قافله په‌تجارتي مالونو بار کابل‌ته راتله چی ددغو څخه یونیم زر باره دآموپوری غاړی مخصو صا بخاراته رسیدل .

افغاني تاجرانو دهند اوروسیي‌دتجارتي مالونو دمبادلی څخه ډیری گټی کولی دامیر دو ست‌محمد خان په‌وخت کی دغه یوه لویه تجارتي لاره وه چی طلایي دروسیي اوبخا را څخه هندته رسوله‌اوپه‌مقابل کی‌هندي‌ښکلي ټوکران روسیي اوبخاراته وړل کیدل همدا شاني دهرات ،فراه، کلات، غزني وړی وچی میوی دشمالي ولایا تو قره قل‌پو ستونه او قالینی نو موړو هیوادو ته وړل کیدل .

هغه وخت چی دختیځ هند کمپني پرټول هند باندی مسلط شوه نودغی کمپنی دخپلو مالونودخرڅلاو اواومو موادو په لاس راوړلو دپاره دنورو آسيا یی‌هیوادو نو په‌زیاته بیادافغانستان په سیاسي اقتصادي چارو کی‌هم مستقیمه مداخله شروع کړه دغی وضع دافغانستان دفیوډا لي‌ټولني شرایط واړول اوپه‌ښارونو کی دنفوسو دزیاتولو ،صنعت اوحرفت پیدا کولو، لویو لارو جوړولو موجب وگرزید .ل اودبورژوازي ژوندا نه مظا هرو مخ راونیو . مشهور انگلیسی‌مورخ بیلو چی دامیر دوست محمد خان معاصر دی دافغانستان‌دداخلي تجارت اوکابل دمارکیټو- نو په خصوص کی داسی لیکی :-

(... په‌غزني کی دپو ستین‌گنډلو پرته بل‌صنعت نسته

## غزنی

اوددغه ځای څخه انگلستان تـــه‌صادرېږی اوهلته دپنډو اوټینگو ټوکرانو په‌شکل اوړی اوبـیر تـه‌ور واردېږی په ټولو ولایاتو حتی ترپنجا به توزیع کېږی...)

دغزنی منۍ او ختـــکی ډېرشهرت لری دغه دواړه دزردالـــو غلودانو سره په‌زیاته انـــدازه دکابل مارکیـټو نو ته ځی روناس چی دغزنی مهم محصول دی پـــه‌بشپړ صورت دبولان، خیبردری دلاری پنجاب اود هند نـــو روسیمو ته صادرېږی. (۱)

امیر شیرعلی خان چی دکورنی‌جنگو نو، فیوډالانو دنـــفوذ او امپریالیزم دمداخلو څخه ډېر په‌تنگ سوی‌وو ویی غوښتـــه چـی په یولږ بورژوازی اصلا حاتـــوشروع وکړی اود هیواد سیاســی او اقتصادی وضع ته‌دخپل ځـــان‌متکی کیدلو پراصل تغیر ورکړی څرنگه چی دغو اصبـــلا حاتـــودبین المللی امپر یـــالیزم مطامعو ته تاوان رساوو نوځکه‌یی پـــه‌مستقیمی مداخلی سره دهغـــــه حکومت ته سقوط ورکړ اود امیرعبدالرحمن دراتلو اورویکارکیدو دپاره یی زمینه مساعده کـــړه.امیر عبدالرحمن خـــان تجـــار ت ترخپل لاربنوونی لانی ونیوی په‌کابل اود هیواد په نـــورو ځایونو کی‌یې تجارتی ســـــرایونـــــه اونماینده گی وپرا نستی دټولـــو کوچیا نو مخصوص دغزنـــی دکوچیانو دځپلو په منظور یی پـــر هغوی باندی دزکوت اودا ســـــی‌نورو مراسمو په تطبیقو لو سره پیسی اخیستی دتجارتی مالو نودحملو نقل اوکاروانو دضروریـــا تو درفع کولو دپاره یی‌ربا طونه‌جوړ کړل چی‌دغه‌رباطونه دانسانی احتیاجاتو درفع کولو [illegible]

کلا، شیخ‌آباد، تکیه، شش گاوغزني ناني، موشکی ،کوه آهن اوبه، دقصر چینی، اغوجان، مقرشیبار ،کلات اوداسې نور رباطونه ډېر مشهور وه .

دلومړی عمومي جنګ په‌اثناکی‌اود هغه وروسته د هیواد روشنفکرا نو امیر حبیب الله‌سراج الملت والدین تشویق اومجبور کړچی دخلکو دغو ښتنوسره سم دهیواد په‌سیاسی او اقتصادی وضع کی ترپخوا زیات‌تغیر راولی اود نوی بورژ وازی ژوندانه اساسونه تطبیق کړ ی‌چی په‌دغه سلسله کی دافغانستان لوی لاری اورباطو نه‌په اسا سی‌توګه ترمیم سول اود تجار تی مالونو حمل‌ونقل دپاره سهو لتونه په‌وجود راغلل په‌کابل،کندهار هرات کی یوشمیر معتبر تجاران‌اومعامله داران پیداسول .

دامیر امان‌الله غازی په‌عهد کی‌دهیواد سیاسی استقلال دمسترد ولو وروسته په‌یولړ سیا سی،اجتماعی اواقتصادی اصلا حا تو پیل وسو دتجارت اصولنا مه‌اوتجارو ته دتقاوی نظامنامه راووته اود افغانستان داساسی‌تشکیلا تو په‌نظامنامی ماده ٥٦ کی داسی راغلی دی ؛

دتجارت وزارت دافغا نستان‌دداخلی اوخارجی تجارت دپراختیا اوآسانتیاوو دکرنی دترقی اوپراختیا اود کانو د را ایستلو دپاره لازم تدابیر نیسی اوهم‌دتجارو دتقاوی په‌نظامنا مه کی وایی :ــ

دتجارو سره د مرستي اوخارجي تجارتي چارو ډېر مخبېولو

همدا شانی دمالیاتو اصولنامه‌راووته اود مواشیو دمحصول په نظامنامه لومړی صفحه کی داسی‌راغلی‌وه :ـ

(... چون در افغا نستـــان‌محصول مواشی به انواع مختلـف واقسام متعدد گرفته میشد مثـلامحصول زکوت، طرق، علفـچـر باج سیخ، شاهی‌گی، تکت‌زکوت‌سررمه‌گی، سرگله‌گی، رو غـن، قروت معمولی، سرکانه، رچکانه‌باوجود محصولات دیگر تکالیف هم مثل حواله خرید جوال، گلیم‌چلی، نوار، پشم ریشمه، توبره، باسلیق اشتر، خر، که‌دولت بـه‌کار میداشت وبالای زکوت ومال رعایا ریزش گردیده واز قـراررِیزش گرفته میشد ونیزمحصولا تیکه برای مواشی گذاشته شـده‌بالای یک‌قوم بیك قرار وبـا لای دیگر قوم‌به دیگر قرار محصو ل‌کم‌ویا زیاد مقرر بود بعضـی از حکام وکار داران خـدا ناتـر س‌بلکی نوکران شخصی شان کـه‌از یك جای به‌دیگر جای حر کـــت‌مینمودند ومصارف خودرا به‌اسم سورسا ت وبارگیر و سـواری‌خودرا باسم الوم ازرعایامیگرفتند وبرای هر کدام وجوه عامل‌وضابطعلیحده وبرای تحصیل آن‌محصلان متعدد مقرر گردیده این قـواعدباعث تکالیف وزحمات مالدارا ن میگردید لهذا بنابر آسوده حالی‌رعایای صادقانه شاهانه ام هـمه این تکالیف وزحمات را رفع‌نموده‌یك محصول به‌اسم محصول‌مواشی بالای تمام مالداران افغا نستا ن‌بدون استثنایی‌قو میت‌وشخصیت مطابق نظامنامه هـذا از هـمه‌مالداران درجمع ممالك محروسه

غزنی

دهغه وخت راهیسی چی زموږ په هیواد کی غیرملی حکومتو نو اقتدار درلود اویا دپردیو تـــرسلطو لاندی وو تجارت اوحرفت ته ډیرپه سپکه سترگه کتل کیدل صنعتگران او مالداران مجبور وه چی دحکمرانانو دخوښی دپـــاره ددوی په کورونو اوپټیو کی پـــه بیکار اویا نه څه اجوری کاروکړی اوکه ددوی په کورنی کی احیانا څه ظرف اوفرش موندل کیـــدی د تبرك اوپیشکش په صورت به یی ورکاوو چی دغی وضع هم پرحرفت او صنعت ناوړه اغیزه کوله اوهر چا کوشش کاوو چی دماموریـنـــو کاردارا نو ،خانانو او روحانیونو په جمع کی ځـــان وشمیری چـــی دهرغمه بی غمه سی .
ددوهمی عمومی شخړی وروسته چی استعمار او امپریالیزم پـــه مستقیم ډول سرکوبه سو او یـــوشمیر مخ په انکشا ف مستقـــــل هیوادونه پیدا سول ددغه جنگ په نتیجه کی په افغانستان کی هم ددمـــو کــــرا ســـی اجـتما عـــی او اقتصادی اصلاحاتو دراو ستلو دپاره هڅی سوی دهیواد تجار ت اوحرفت نسبت پخواته ترتنظیم لاندی ونیول شو اود استهـــلا ك اصلی مرکزونه دافغانی پخـــو اومو مالونو درسولو اومناسبـــی بیی دخرڅولو دپاره لاری چـــاری وپلټلی سوی لوی لاری جـــوړی سوی دتولیدی او استهلا کـــــی مرکزونو په منځ کی ارتباط قایم شو اوپه نتیجه کی یو شمـــــیر شرکتو نه اوانفرا دی موسسی په وجود راغلی چی دوی په خپلو تجار تی او انحصاری تشبثا تـــــو اودحاکمی طبقی سره پـــه یـــولا س کیدلو اوگټی شریکیدلو پـــه اثرزیاتی پانگی برابـــری کـــړی اود ځینو کمپر ادورانو او استثمـــارچیانو په مرسته یی دهیواد دملی اقتصاد پر شمزی خیټه واچو لـــه اود اقتصادی اوبشری قواؤ پـــه زیاته دخواری کښنانو دزهنی اوجسمی استعدادو نو په زبیښلـــو

# دغزني (زاول) کوچیان

غزني (زاول) داوسنی افغانستان یوه پخوانی اوتاریخی سیمه ده چه‌په هغی کی کلات، کند هار ،هیلمند، فراه او سیستان شامل وو دغه سیمی‌ځرنگه چی ډیری ورشو گانی او ځړ ځایونه لری نودکوچیتو باومالداری دپاره زیاتی مساعد ی دی. په عمومی توگه دلته‌دپښتنوددوو لویو ښاخونوغلجی اودرانی ځینی (خیلو نه )او (زی) لکه‌ناصر، تره‌کی ،خروټی ـسلیمان خیل. نیازی ،لودی، نورزی، الیزی‌اڅکزی، ساگزی په کوچیتو ب ژوند کوی .

داویش برسیره ددوی دژ بی‌داصطلا حاتو اوتلفظ په‌اختلا ف

## غزنی

چه په غزنی کی ۱۲۰۰۰۰ تنه‌زابل کی ۳۵۰۰۰ تنه په کندهار کی ۲۰۰۰۰ تنه، په اورزگان کی ۴۰۰۰۰ تنه ،په‌فراه کی ۷۷۵۰. تنه ،په سیستان نیمروز کـــی ۲۰۰۰۰ تنه گڼل کیدل (۱).

دپښتنو دځینو ښـاخونـو دکوچیتوب مهم عوامل په تـیر و ځو پیړیو کی ددوی پر هیـــوادباندی ستر یرغلونه ، کورنـــی شخړی ،تهذیبی اختلا فـــونه اوهمدا شانی داقلیمی او جغرا فیـا وی موقعیت تغییر، په هندباندی‌خارجی استعمار ،دمنځـنی آسیا دلارو څخه دتجارت دلوری‌گرزیدل‌اوداسی نور شمیرل کیږی چـــی دغو قبایلو دټولنیځ ژوندانـــه‌دطبیعی اقتصاد له شرایطو څخـه تکامل ونه‌کړ اوځای پرځای پـا ته‌سول .

که څه‌هم داوسنی زمانی‌قبیله‌یی اتنیك تشکل دلومړی کـمون څخه توپیر لری ځکه‌په لومـړ ی‌کمون کی طایفه‌هغه اتنیکی‌گډون بلل کیدی چی‌هلته طبقاتی قـشربندی نه‌وه ددغه ډول ژوندا نـه په‌لومړنی مرحله کی‌به نراوښځی‌په شریکه کار کاوو اوهرڅا بـه ټول شیان دخپل ضرورت سـره‌سم‌استعمالوله گډمالکیت‌یی‌درلود وروسته بیادکار تقسیم شروع‌سو نارینه وو به‌ښکار اوجنگ‌اوښځو به‌دکور کار کاوو ښځو زیـــا ت‌اهمیت درلود اودمادر سـالا ی په‌موقف کی‌وی هیڅ‌ډول درونـدسپك یاطبقاتی ویش موجودنه‌وو هره فیصله به‌په جرگه کیـــده‌چی‌دغه دور دلومړی کمون په نـامه هم یادیږی ددی دور په‌پای کـې‌انسانا نو په ټولنوکی چـی‌پـــه اصطلاح جـیـن Gens ور ته‌ویل کیږی په‌ژوند کولو پیل وکړ

غزنی

داسی کلمه ده لکه ددی مراد فــی یونانی کلمی جنوس Genos غونډی چی له‌مشترکی آریایـــی‌ریښی کین Gan څخه مشتق سوی ده اوپه جرمنی کی چـــی‌دقاعدی سره‌سم آریای (گ) پـه (ك) اوښتی دی نوهلته داکلـمه‌د(کن) Kan په‌صورت لیدله کیږی اومعنی یی‌زیږول دی‌دجنز Gens جنوس Genos

اود سانسکریت جاناس Janasاود گوتهی ژبی کونی Kuni دپورتنی قاعدی‌سره سم‌دناردیکی‌ژبی اود انگلو ساکسون کیــن Kyn دانگریزی ژبـی کـــن Kin اود منځنی پاس جرمنی کونی **Kunne** ټول یو شـان‌اوپه مساوی توگه د(زی) قومیت او (نسب) مفهوم افاده کوی خــو په لاتینی کی دجنز کلمه او پـــه یونانی کی د (جنـوس) کلـــمه‌مخصوصا دهغو کانسکو یتی پښو دپاره استعمال سوی‌ده‌چی داپښی‌دیو مشترك نسب چی‌یوه نیکــه ته‌ځان رسوی ادعا کوی او ځینواجتماعی او مذهبی موسسا تــو په سلسله بیا داپښی یوپه بـــله‌پیوند اویوه مخصو صه ټولنــه جوړوی چی‌دهغه مبداء اوما هیت‌تردی وخته زموږ ټولو مؤرخینو ته تاریك پاته‌دی (۱).

لومړنی ټولنی به‌ډیری کوچنی‌وی اوپه مالداری به‌یی گــذاره کوله وروسته به‌بیا څوجینه پــه‌خپلو منځو کی‌ســره یوســوه او قبیله به‌یی جوړه کړه اوځانــــته‌به‌یی مشروټا که دیوجین شمیــر چی‌به زیات سو اوپرخپلی مینی‌به‌یی اقتصادی ټیك نه‌سوکولای نو یوه به ځینی رابیله ســوه اودنوی اوآبادو ځایو دموندلو پــه

## عزنی

هڅه به‌یې کوچ‌کاوو. دوی به‌لــه‌یوځای څخه بل‌ځای ته په پسر لی تلل‌داځکه چې‌په دې موسم‌کی بــه‌ددوی مواشی لنګیدل اود خوراك دپاره به‌یې هرچیری واښه‌موندل‌دوی به‌زیا تره دسپوږمی پــه رڼا کی کوچیدل هغه‌وخت چې‌به‌دیــوجین څخه خلك بیلیدل نوټول بــه نغری ته مخامخ کښینســـتل اوفیصله به‌کیده چی څوك دی ولاړ سی او څوك دی‌نه بیابه‌دتګ مشر ټاکل کیدی اوکوچیانو ته‌به هــر ډول‌مرستی ورکولی کیدی .

دطایفوی نظام محدودیت فردی‌علایق اوګټی محــدود ولی آزادی اود فردی ابتکار روحیه یــی‌خفه‌کوله او وروستنی تکاملاتو دغــه اشتراکی نظام ړنګ کړ.

آریا ئیانو چی دآریانا ویجی‌څخه کوچ وکړ داغالبا دحضر ت عیسی څخه پنځه‌شپږ زره کــا له‌دمخه‌وو ددغی دوری حالات وید، شاستر .سمرتی چی دآریائیا نوپخوانی کتابونه دی په تفصیــل سره راوړی اووایی چی هـــغوی‌دشپاړسو ملکونو ګــرز یــد لو وروسته یوه پښه یی په‌هند کــې‌میشته سوی اود کیکو سو سیانو اکا سیتیانو دکــو چیــتوب دوردبرونز (مفرغ ) دپیړی ســـره ارتباط مومی .

خو پښتانه کوچیان چی دآریا ئیانــو یــوه پښــه‌ده ددوی دکوچیتوب تاریخ تر کو چیـــو(ساکو) پوری رسیږی چی نــامتو کوشانی امپراتوری په همــدوی‌پوری اړه لری .

## غزني

دآريايي کوچيانو دليږديد نیدتاريخ پههکله چه تراوسه کوم سندسته هغه (اوستا)دیچهوايي اهورا مزدا ( دزر تشتا نو خدای ) دآريا ويجي مځکه په ډيربنهځای کی پيدا کړه خوا هريمن شيطان دهغي پهمخالفت قيام وکړاوډيره سړوبی يی پکښی پيدا کړه څرنگه چهپه دغه سيمه کیدسختی سړوبی اود ټولنی د افرادو دشمير دزياتيدو له کبلهداوسيدلو نور تيکنهوو نور ښه ښارونه اوځايونه يی پيدا کړلچه شميريی ټول۱٦ته ر سيږی ددغی جملی سغد، مرو، بلخ، نيسا يه ياپارت ،هرات، اوروا (خوارزم) هيرکان (گرگان) ری، ورنه گيلان دیادونی وړدی .(۱)

خو دنولسمی او شلمی پيړ ی کوچی قبايلو په زياتره برخو کی طايفوی اوقبيلو ی مناسباتدتيروبقاياوو دقشر په توگه سا تلی اوطبقاتی تضادونه يی پهزيا تروبرخوکی دفيو ډالی مناسباتو په شکل څرگنديږی دکوچيا نو اوقبايلو حاکم قشر عموما په فيو ډالانو اوملی بورژ وازيانو اوښتیچی په ځينو سيمو کی دمځکو څښ ځايونه اوزياتره مالو نه دهغوی په واك کی راغلی دی .

په واقعيت کی طايفه يی اوعشيره وی اقتصادی سيستم په کلی توگه طبيعیاقتصادی سيستمدی اود طوايفو اوخيلو نو دروز گار عمده وسيله دخارويو سا تلدی خوپه دهقانی اقتصادی سستم کیيې عمده وسيله کرنه ده .

کوچيان اوقبايل نه يوازیدافغانستان په اقتصادی وضع بلکی په سياسی سرنوشت کیيې هممهم رول لوبولی اوانگليسی استعمار اوبين المللی امپرياليزم هرکله ددوی دآزاد يخواهی او

## عزني

کی‌قومی تفرقی او سیاسی لانجی‌اچولی اوتراوسه یې یوله بــــله لیری ساتلی دی .

دنمار کی کلوس فردینا نــدچی‌په افغانستان کی‌د ۱۹۵۳څخه تر ۱۹۵۵ کالو مطالعی په نتیجه‌کی دپښتنو کوچیانو په خصوصی کی یومعتبر اوتحقیقی اثر لیکلی‌دی په‌دی اثرکــــی لومــــړی دی دکوچیانی ژوندانه نیټه دعــراق‌اوفلسطین دلرغون پیژ نــدنی دتــــازه کــــیند نــــو لــــه‌مخــــی لــــه میــــلا د څخــه تر ۷زرو کالو پخوابنودی اووایی‌چی دکوچیتوب ابتــدا له یــو ی داسی ټولنی څخه انکشاف‌کړیدی‌چی ګډ اقتصادیات یی لرل .

که کوچیتوب تعریف سی نوویل کیدای سی چی‌یوه پیشه بــه یی تجارت وی چی‌هغه دمالو نــوپه‌نسل ګیری باندی ولاړ وی.

کوچی طایفی له‌یوه ځای څخه‌بل ځای ته دمالونو دخــر دپــاره لیږدی اوزیاتره په‌کیږدیو کــې‌اوسی .

داډول ژوند دتودو لتو پـــه‌پراخو جلګو. دښتو اوغرونو کی موندل کیږی چی‌داتلانتیك لـــه‌څنډو ترشمالی افریقی په‌ټــــول منځنی ختیځ دافغا نســـتان اوبلو چستان دهند په‌ارته خــاوره احتوا لری اوله دغه ځایه‌په‌معتدله‌منطقه کی دترکستان پــه‌لور د تبت اومنګو لیا په‌هسکو مځکــودچین ترسرحد اتو اوږدیږی .

دغه شانی کوچیتوب اســا ساپه‌اقلیم او جغرافیا یی محــــیط پوری اړه لری‌چی له‌ټولو لــو مړی‌په رطوبت اووچوا لــی او اوریــا پوری مربوط دی.

ددغی منطقی سرحدات په حقیقی توګه نه دی

## عزني

سيمو اولويو جلگو کی دبزگرانواومالدارانو ترمنځ دځې ځايو نـو اوزراعتی مځکو پرسر رقا بـت موجودوی حال داچی په وچو سيمو کی په کومو ورشو گانو کی چـی وابنه موندلی کیږی بزگران اوبو ته نژدی سيمو کی اوسی اوپـا ته برخه يی دکوچيانو ځې ځـايـو نه جوړوی .

ځينی محققين بيا دګو چيانیژوند مطالعه دمنځنی ختيځ څخه شروع کوی چی په دغه کی مراکش الجزاير ،تونس، طرابلس، مصر ،اسرائيل، اردن، لبنان، سوريه عراق، ايران، افغانستان،سعودی عربستان ،يمن، عدن، عـــمان، کويت، بحرين او کله ســـوډان پاکستان اوترکيه هم شامليږی .

دد غــو سيمو ځيــنی بــرخی چه اوس دصحرا گانو په شکل پرتی دی په پخوانيو زمانو کیيی آباداوځلاند مدنيتو نه درلودل خو په را وروسته کی کله دطبيعت دقهراو کله جاهلانه اعمالو او امپـــر ياليستی يرغلونو په نسبـــت دتباهی سره مخامخ ســوی دی او اوسيدو نکويـــې دمهاجـــرو اوکوچيانو په شکل سرگردانه ژوند موندلی دی .

ريجی کاندر چه ديو نســـکوله خوا دزياتو کلونو دپاره دافريقی دشمالی اومنځنی ختيځ صحرا گانی مطالعه کړی وايی ؛

چه دغو صحرا گانو په پخوانيوزمانو کی پخپله لمنه کی (١٥) لوی تمدنونه او امپرا تـــور ی روزلی چه دالمغرب څخه نيو لی بياتر تونس، ليبيا ،مصر بـــينالنهرين ،ايران، افـغا نستــا ن پورې پکښې شامليږي .

## عزنی

دمثال په‌توګه په افغـا نـــی‌سیستان کی چه‌په هغـه کـــی نیمروز ،چخانسور ،گرش‌اونوری‌سیمی شاملی دی دومری زیـاتی آبادی اومعموری موجودی وی چه‌دآسیا باغ‌بلل کیدی چنانچه هغه جګی اوپړیړی ونی چی‌دهیلمندپه‌ځینو تاریخی ځایونو کی موندل شوی پرتنه‌یې دخلورتنو غیـــړهم نه‌شی راګرځیدلای همدا شانی ترخاورو لاندی چه‌دلرګو کوندی‌موندلی سوی پردی دلالت کـوی چه یووخت دغه سیمه زیـا تـه‌سمسوره وه بیهقی اوعنصری په لښکرګاه کی ددغو ونو یـادونه‌کوی دبست اوزرنج تر منځ یوه لویه ویاله کښله سوی‌وه چه‌دهغی‌په‌واسطه دزرنج ټولو کوڅو تـه اوبه رسیدلی په‌دغه شاوخوا کـــی‌ددوو سوو کیلومتر وپه‌اوږدوالی لوی‌خرابی سته‌چه‌د معماری شکل‌یې پیش‌رفته دی دافغا نســتان په‌شمالی برخو کی دبد خشـا ن‌دغرونو څخه ترآقچې اوسر پـل پوری پراخی جلګی موجودی و ی‌چه‌یونا نیانو هغو ته(هزار شهر) وایه، دآمو درود څخه ویالی‌کښلی‌سوی وی چه (هژده نهر) یې ښه نمونه ګڼله کیږی .

هغه برخی چه‌دکرمان او بلودچستان په‌منځ کی دصحراګانو په شکل پرتی‌دی ددرومیاشتو دپاره‌یی‌دلوی سکندر دقـواوو دپـاره اعاشه برابروله. دایران په‌صحراووکی دعمر خیام په‌وخت کـــی (۱۳ میلادی پیړی کی)لوی واحی‌موجودی وی چه‌تر یونیم ملیو ن تنو نفوس یې‌درلودل دغی واحی‌ته نشاپور ویل کیدی‌چه اوس تر ۴۰زره زیات نفـــوس نـه‌لری.دهارون الرشید په‌وخت کی‌عراق د۳۰ـ۴۰ ملیونو پـوری نفو س‌درلودل خونن یی‌نفوس تر ـ۱۱

دی دافریقې دشمالي برخي سرگذشت همدا شاني دی قرطجه چه په تیونس کې واقع‌ده (دروم‌امپراتوری په‌وخت کې یې مترقي مدنیت درلود نه یوازې‌یې‌دځان دپاره خواړه برابروله بلکه دروم دامپراتوری غله خانه گڼل کیده اوس‌دائتکال په چا پیره وهل سوی اود صحراگانو شکل‌یې موندلی دی (۱)

خوهغه محققین چې دختیځ اولویدیځ دابعادو موازینو ته‌اعتبار ږدی په‌دغه خصوص کې دمنځنۍختیځ کلمه نه‌مني او استدلال‌یې داسې دی: ځکه چې‌ددغې سیمې‌یوه برخه په گرینیچ کې راځي اود امریکې څخه اروپا ته‌نژدی ده نودمنځنۍ او میانه‌ختیځ دکلمې ورته راجع کول‌نه ښایې‌خوددی سره بیاهم دغه سیمې دختیځ اولویدیځ له نظره په‌منځ کې واقع دی اوله بل پلوه هم منځنۍ موقعیت لری اودغه نظرځکه مهم‌دی چې‌دغه سیمه دسترا تیژیك نقطه نظره دآسیایي اواروپایي نژادو دنفو سو ډکواو او بډایو سیمو په‌منځ کې واقع‌ده اود کښتیانو اوکاروانو په واسطه دافریقې اود صحرادجنوب سره موښلې اودغه د منځنۍ ختیځ خلك‌دی چې دبیلو تاریخي لیږ دیدنو په‌واسطه یې دنړۍ لیرو سیمو ته‌افکار اومالونه انتقال کړیدی .

منځنۍ ختیځ دهغه داوسیدونکو په‌لحاظ پردرو جغرا فیا یې برخو ویشل کیږي :ـ

لومړی هغه مځکې چې کلیوال‌پکښې اوسیدلای سي.

دوهم هغه مځکې چې خوك‌کوچ پکښې اوسیدلای نه‌سي.

دریم هغه مځکې چې داوریاله‌مځې په‌ځینو فصلو کې او سیدل باندې ممکن وی .

دریمه برخه بیا پردرو نــوروفرعی برخو ویشله کیږی ؛

دصحرا یوه برخه چې‌سکونت‌باندی کیدای سی. دغرونو یــوه برخه‌چې سکونت باندی کیــدای‌سی .

دستیفو نو یوه بــرخه چــــې‌سکونت باندی کیدای سی چې‌په دغو درو واړو برخوکی دکرهنې‌دمځکو څخه څړ ځـــایو نو تـــه لیږدیدنه تدریجی ده اوپه همدغه‌لامل ددغه ځای داوسیـــدو نکو اقتصادی سیستم تدریجی تغیــرکوی . (۱)

---

(1) Carvan: The story of the middle east. by henry Holt and, Company, Ine P, 211 New York 1951.

# دغزنی اداري تشکیلات

داعلی حضرت امان الله غاز ی‌دملکی تقسیما تو دنظامنا مـــی لەمخی افغا نستان پر ولایاتــو،اعلی حکومتو باندی ویشل سوی ؤ بیا دغه ولایات اواعلی حکومتونه پەلویو حکومتو، اوعلاقــه دار ی گانو باندی ویشل سوی‌وو. نوپەدی اساس پەافغانستان کی‌پنځه ولایتونه او ځلور اعلی حکومتونەموجود وو.

ولایتونـــه :ـ ١ ـ کابـــل٢ـ کـنـدهـار ٣ـ هـــرا ت ٤ـ تـــرکستان ٥ـ قطـــغن اوبدخشان .

اعلی حکومتونه :ـ

١ـ مشرقی سمت ٢ـ جـنو بی‌سمت ٣ـ فراه ٤ـ میمنه .

ولایتونه دنایب الحکومه گانواعلی حکومتو نه داعلی حاکما نو

دحاکمانو اوعلا قه دارانـــودصلا حیتونو، اختـیارا تـــو او
خدمتو نوپه منځ کی توپیر موجودنه‌وو دحکومت دمځکی دپراختیـا
اواهمیت له‌مخی دحاکم او یـــاعلاقه دار درجه ټاکل کیده ددوی
ټول امتیازات اوصلا حیتو نـــه‌دهغوی په‌مخصوصه نظامنامه کی
ښودل سوی‌وو :ــ
ددغی نظامنامی په‌لومړی فصل‌کی‌دکابل ولایت ذکر دا ســــــی
ســوی‌وو :ــ
دکابل په‌ولایت پوری دغــــه‌حکومتونه تړل سوی دی( په‌راس
کی یی والی) ،
دکابل لوی حکومتونه :ــ
دشمالی سمت، دغزنی، ددایزنگی لوی حکومت .
دغزنی په‌لوی حکومت پور ی‌دغه کلی‌اوعلاقی اوحکومتو نـــه
مربوط دی.
کلی :ــ روضــه ،رحـــمك ،ده خدای داد،تاسن،خواجه عمری
علاقی : جغتو، ناهور، سراب‌قره باغ، اندړ اومیری .
حکو متونه :ــ جـــا غـــور ی(دریمه درجه حکومت) تـــرلا س
لاندی علاقه داری گانـــی یـــی‌مالستان ،میر ادینه، پښی، شیر
داغ، مقر (دوهمه درجه حکومت)ترلاس لاندی علاقه داری گانی.
آب بند ،سهیل خیل، لویه ناوه،(دوهمه درجه عـــلا قه داری )
کتهواز (لومړی درجه حکومت)ترلاس لاندی علاق.ه داری‌گانی:ــ
وازه خوا (دوهمه درج)ارگون(دوهمه درجه).
جانی خیل (لومړی درجه) برمله اومرغه (لومړی درجه) (۱)
نوپه په‌دی اسا س تر ۱۳۱۱پوری غزنی دکــابل پــه حکومت

حکومتو نه یه‌جاغوری، اجرستان چقمنی رای ملك، مقر او علاقه داری گانی یی پشی، شیر داغ ، گیلان، سهیل خیل، آب بند نو میدل او وروسته په اعلی حکومت تبدیل سو اوتر ۱۳۴۲ کال پوری په دغه اداری شکل پاته شو .

دغه تشکیلات دومره پراخ اوغیر منطقی وو چی‌حتی دځینو ولایتو نو پراخوالی دملگرو ملتو دکوچنی غړی رقبه جوړوله او طبیعی موانعو لکه لوړو، صعب المروره غرونو، کږووږو درو ، اونه پی کیدونکو دښتو اوبیابانو داو سیدونکو په‌منځو کی‌یی په ځینو موسمونو کی‌دارتباط کړی‌شلوله ترانسپور تی اومخابرا تی مشکلات یی‌زیات تولیدول او یو نایب الحکومه اویا اعلی حاکم‌په هغو وسایلو او امکاناتو سره‌چی‌په‌لاس کی‌یی‌وو دخپلو مربوطاتو دبیلو چارو وارسی نه‌سوه کولای‌اوددغو سیمو اوسیدو نکو په مشکل سره کولای سوه‌چی خپل ځانونه بیله زیاتی جسمی‌اوما لی ستو نزو دولایاتو اویا اعلی حکومتو نو مرکزو نو ته ورسوی اویایی دعرفانی ،اقتصادی اونورو گټو څخه څرنگه چی لازم وی مستفید سی. نودمربو طوچارو دآسانتیاوو اجتماعی او اقتصادی، صحی اوعمرانی چا رودحسن تطبیق اوخلکو دمشکلا تو درفع کولو په‌منظور د۱۳۴۲ کال‌دحوت د۲۷ نیټی څخه غزنی دافغانستان د۲۹ ولایاتو په تشکیل کی‌دیو ولایت په حیث وپیژندل سو اوهر اداری واحدیی‌عدلی محکمه اومالیاتی څانگی ومو ندلی .

کوله اوهغه علاقه داری چیعدلیاومالیاتی څانګی نه درلودلی اود
حکومت په شکل‌نه سویموجودیدلای دتشکیله وغورځیدلی او ځینی
علاقداری دضرورت له‌مخی پـــه‌څلورمه درجه ولسوالی واوښتی.
دسنترل آسیا په مجله کـــی‌دغزنی داوسیدونکو شمیر لـــس
زره تنه افغانان ښودل سوی چـــه‌ددی څخه‌پرته دوه‌سوه کورنـــی
هزارګان اویوسلوپنځوس کورنی‌هندوان هم اوسیږی (۱)
دغزنی ښار دختیځ ۲۵ـ۶۸ـشمالی ۳۳ـ۳۳ طول اوعرض‌البلد
کی واقع مساحت یی ۳۲۸ کیلـــومتره مربع اونفوس یی‌د ۱۹۷۳ـ
نفوس شماری په اساس ۲۶۴۳۲تنوته رسیږی غزنی دبحر دسطح
څخه ۲۲۰۰ متره لوړ والی لـــری‌دکلیو شمیر یی ۸۵ته رسیږی‌چی
نوم، نفوس او موقعیت یی‌په دی‌ډول دی :ـ
قلعه آهنګران ۲۵۰ لویدیـــځ‌دامیر محمدکـــلا ۲۰۰ جـــنو ب
ګدول آهنګران ۲۵۰لو یـــد یځ‌پس حصار ۹۷ شمال لوید یځ
روضه سلطا ن ۲۰۰۰ ختیـــځ‌شالیز ۷۳۲ جنوب.
بهلول صاحب ۹۰۰ شمال دشالیز دشیرمحمد کلا ۴۸ جنو ب
شمس صاحب ۱۰۱ لویدیـــځ آرزو ۱۳۰۱ جنوب
حکیم صاحب ۴۸۸ ـ ګدول ملک‌محمد ـ ـ
مغلان ۳۲۰ شمال لویدیځ امیرشهباز ۵۰ لویدیځ
کشك ۴۵۴ شمال لویدیځ زرګر۲۰۱ لویدیځ
منګل ۸۱۸ لویدیځ دنـــیا زیـــو کلا ۹۶ شمال لویدیځ
خواجه احمد ۶۵۱ لویدیځ دلوړو نیازیو کلا ـ شمال لویدیځ
ګدول رعیت ۱۳۵ جنوب دکښته نیازیو ـ ـ

لوړ کلاغچ — — دخوا جـهروشنایی نومی کلا ٤٧٦ جنوب
کبنته کلاغچ — — زیوچ زیوجات ١٢٠ جنوب‌ختیځ
ده خدایداد ٧٩٥ جنوب ختیځ ناکام ٨٥ جنوب ختیځ
نوعی ٥٦٠ شمال ختیځ دقره‌باغ کلی ٧٧٢ جنوب ختیځ
زلزله ١٢٦ شمال ختیځ علی لالا ٩٩ جنوب ختیځ کلاتی
کلاتی ٥٩٢جنوب ختیځ اربابان ١٧٩ شمال ختیځ
جلو گیر ٣٣٤ شمال هندو گذر ٣٩٧ ختیځ لاغر ی
٥٠٠ لویدیځ
گدول جبار ١٠٨ شمال ختیـــځقلعه قاضی ٤٠٠ لویدیځ
گدول وحشی — لو ید یـځدبابا علی صاحب مســـجد ٣٠٠
شمال ختیځ
گدول اختر — شمال لویدیځدخطبی مسجد ٢١٠ لوید یځ
گدول ملاعبدالرحیم — لویدیځ محل قره ٢٠٠ شمال
گدول پرویز ١٨ شمال دسنایی‌دروازه گذرسنایی صاحب ٤٥٠ـ
شمال لویدیځ
قلعه عشرت ١٧١ لویدیځ قلعـه‌نو سرریگ ٢٠٠ جنوب
قلعه مدیر — — دیعـقـو ب‌کلا ١٠٨ جنوب ختیځ
دکلانتر کلا ٥٤٣ شمال لویدیځقریه میرزا عطاؤالله— جنوب‌ختیځ
پیر زاده ٤٠٠ جنوب دکلا لیـومسجد ٢٧٥ ختیځ
دنیازیو چهار کلا ١٣٦ جنو ب‌محله رئیس ٥٧٥ ختیځ
دقدم خان کلا ١٠١ شمال ختیځمسجد دروازه ٥٦٠ شمال ختیځ
دارباب سرای ٧٩ شمال لویدیځخواجی بقال صاحب٣٠٠ شمـال
لویدیځ

## غزنی

دملك كنجك كلی ۲٦۱ لویدیځ غیاث قلندر ۳۰ ـ
دمفتی مسجد ٤٨٦ شمال لویدیځ قلعه خنجر ۳۵ شمال
قلعه جوز ۲۹ ختیځ اسفنده ۹۳۲ ـ
قلعه عمو ٦٥ شمال

قلعه ولی ۱۰٤ شمال پوستین دوز ۸۱ شمال
دمحمد علی کلا ۲۱ شمال دباباجی صاحب مسجد٦۳ شمال
مسجد اطاق شاه ۹٦ ـ دشاه ابوالفتح مسجد ۷٦٦ ـ
علیزی ٦۰۰ جنوب دشکور خان کلا ـ لویدیځ
قلعه امیر صاحب ـ ختیځ قلعه درخشان ـ ـ
سیکان ـ ـ امالستان صاحب ۲۵۰ شمال
گومالی ٦۰ جنوب ختیځ

دغزنی داداری مرکزو نـــوترمنځ مسافی پهلاندی ډولدی :

جغتو ـ مالستان دناهور دلار ی۳۵ کیلو متره
جغتو ـ ناهور ۳۷ کیلو متره . مقر ـ مالستان ۵۹ کیلو متره
غزنی سرده ۳۸ کیلو متره مقر ـ گیلان ۱۷ کیلو متره
غزنی ـ زنخان بند ۲۵ کیلومتره مقر ـ ناوه ۷۲ـ۲ کیلو متره
غزنی ـ جرمتو اوسهراب ٤٨ـ کیلو متره
غزنی ـ ناهور ۹۵ کیلو متـــر
غزنی جاغوری (دقره باغ پهلار) ۱٦۵ کیلو متر
غزنی ـ اندر ۲٤ کیلو متر
غزنی قره باغ ۷۲ کیلومتر

# جغتو

محلي روايات دجغتو دتسميي‌په‌وجه کی وایی:ـ په‌پخوا نیو زمانو کی دجغتو دسیمو سردارانو په‌سر کی جوغه یا تاج وهی نوځکه خلکودغه‌سیمه دجغتو په‌نامه یادوله خواوس هم ددغی سیمی اوسیدونکی چی خولی‌پرسروی هغو ته (کلاتو) یاد خولی اوکلا خاوند وایی خوځینی لیکوال دجغتو او جاغور ی کلمی دهیوانتیی سانك‌دتساوچوچا اودسنسکریت دجاگودی چه‌یو یووخت په‌دغو سیمو کی زعفران‌پیدا کیدل منسوبوی اوجاگودی دجغتو بل‌شکل دی.

جغتودغزنی ولایت‌دیوی ولسوالی‌حیثیت لری چی شمال ته یی د وردکو دایمرداد دناهور دحکومت‌دعلو دانی، سوختی اوآب در ی اوجنوب ته‌یی دقره‌باغ‌دولسوالی‌درعنا خیلو کلی اوختیځ‌ته یی داندړو دولسوالی دواغز کلی‌اولویدیځ‌ته‌یی مالستان‌پروت‌دی۱

جغتو په ۳۳، ۳٤ شمالی او۱۱،٦۸ ختیځ طول البلد او عرض البلد کی واقع مساحت یی۱۲٦٥کیلو متر مربع اونفوس یی د ۱۹۷۳ ـ ۱۹٦٥ کال درسمی‌نفوسو شمیر لو په اساس ۲٥۲۱۲ تنو ته رسیږی .

جغتو دبحر دسطح څخه۲۷٥۰متره لوړاو ۲۹٤کلی لری چی داوسیدو نکو زیاته برخه یی‌هزار گان او افغانان جوړوی چی داندړو او خوگانو لوی طایفی‌پکښی اوسی .

مځکی یی موجداره اوددرو،غونډیو اولوړو غرو په شانی‌پرتی دی.

## غزنی

دختیځ ځخه ترلویدیځ پوری یې دساحی اوږدوالی (۵۰)کیلو متر
اوسیوریی دشمال ځخه جنوب ته ٤۰کیلو متره اټکل شوی .
دجغتو مرکز په منځ کـــــیدگلبوری په دری کی واقع اونوری
اوه دری یی دقیاق. رشیــــدان،جرمتو دیوسف کلی، دسهــرا ب
ترکان، واغز، ککرك اوشاکی په‌نومونو یادیږی .
په جغتو کی زیاته واوره‌اوری‌اوژمی یې طاقت فرسادی خـــو
پسر لی اودوبی یې په‌زړه پوری‌آب‌اوهوا لری دقوس ځخه بیـــا
دحمل ترلسو پوری یې مځکه پــه‌واورو پټه وی .
دجغتو غرونه په مشهورو اومحلی نومونو یادیـږی چی پـــه
سهراب کی دگل کــوه او شمس‌الدین دغره لمنی دیوســـف او
بالاخانی غر اوپه‌جرمتوکی روغنی‌گلبوری ،سفید قول غرونه پـــه
ککرك کی دسیاه قول غرپه‌قیاق‌کی دغرغرك اونبیل‌غر، پـــه
رشیدان کی دباباسان غراوداسی‌نور موجود دی .
جغتو کوم لوی رودنه لری اوهغه رود چی‌دسهراب ځخه سـر
چینه اخلی دجغتو دیوسف،جلگاه‌او رشیدان دکلیو ځخه تیر یـږی
اوبند سلطان ته لویږی دسلطان‌داوبو لویه ذخیره هـــم‌دغه رود
جوړوی .
دسهراب ددری کرهنه آبی‌اودیمه‌ده اونور کلی یی پــه‌رود او
چینو خړوبیږی مهم پیدا وار یی‌آلو، زردالو انگور اوپه‌ځینو کلیو
کی بادام اوپه واغز کی ختــکی،هندوانی همدا شانی داوبـــو او
دیمه غنم، اوربشی ،جوار ،ماش‌مشنگ ،نخود هم‌کرل کیږی کـــه

جرمتو په‌بالاخانی غره، سفیدقول غره کی‌دقیاق په‌بوجه حرنی، اود رشیدان دباباشان اودسهراب‌دغرغرك اونورو کلیو کی میله ځای جوړوی.

. په (۱۲۷۱) کال کی امیرعبدالرحمن خان دپوونده وودمال څړاو هزار گانو دمال څړترمنځ‌حدود وټاکل اودغه سیمه پرنهو برخو وویشله شوه، چه حدود يې‌دناور، کدنی اواجرستان څخه تیریدل خوڅرنگه چه‌دپو ونده‌ووما‌لونه او ضرورتو نه ډیرو نودوی په دایزنگی، بهسودو، ناور، مالستان، اجرستان کې هم خپل مالونه څرل او وروسته‌يې‌قانونی اجازت وموند بیا مال څړونه ددولت ملکیت اعلان‌سول‌اوپه پووندوو وپلورل سول اود هری قبیلی څړځایونه‌معلوم سول‌چه‌په عنعنوی توگه تراوسه دوام لری (۱).

دسهراب دشمس الدین اوقریه‌یوسف په غرونو کی کله‌کله د هوسیو ښکار اود سهراب ددری‌په ځینو کلیو کی‌دهلیو، کوترو اوزرکانو ښکار شته.

دجغتو اوسیدو نکی که‌څه هم‌کروند گردی خو څرنگه چی يې دکرنی فصل لنډدی نود کمبلو، برکو، کراستو، ډول ډول‌جورابو جاکټو په جوړولو هم لگیا کیږی‌چی تولیدات يې زیاتره په غزنی کابل اوکند هار کی تاوده‌خریداران لری. څرنگه چه جغتو اقتصادی اهمیت لری نو تجاران‌او معامله داران دکال په بیلو موسمونو مخصوص دپسونودسکول په‌وخت کی د وړیو، پوستو نو، غوړیو اوداسی نوروامو‌الو دپه‌لاس راوړلو دپاره‌جغتو ته‌ځي په‌دغه وخت کې ...

غزنی

په نه بیی ځینی دلاسه کوی دجغتو ځاروی په کال کی ۷۳۳۱۲ راسو ته رسیږی .

جغتو دکو چیانی لاری پر ته نسبتا پوخ او موټر روه سړك هم لری دغزنی دمرکز څخه دجغتو ترمرکز پوری یوولس کیلو متره دقیاق دره چی دمرکز په شمال کی واقع ده ٦ کیلو متره دوردگو درشیدان دره چی دمرکز پهشمال کی واقع ده ۱۲ کیلو مترهدجرمتو دره اود یوسف کلی چی دگلبوری پهشمال لویدیځ کی واقع ده ۱۰ کیلو متره دسهراب دره دگلبوری دری لویدیځی ته واقع ده ۱۲ کیلو متره دسرکان دره چی دگلبوری دری جنوب ته واقع ده ٥ کیلومتره دوا غزا اوکگرك دره چی دگلبوری دری اوسر کان جنوبی پلو ته واقع ده ۱۲ کیلو متره شاکی دره چی دچو لگرد ذری جنوبی پلو ته واقع ده ۱٤ کیلو متره سرك اوږدشوی دی .

دوروستی رسمی احصا ئیه لهمخی چی په کال ۱۳٥۲ کی ترتیب شویده دجغتود مواشیو، صکو کودهیکه مالیه ۲ر۲۰۷۳ ـ افغانیو تهرسیږی جغتو ۲۹٤ کلی لری چی نو مونه، دنفوسو شمیر اود مرکز څخه یې موقعیت پهدی ډول دی ؛

| نوم | نفوس | موقعیت | نوم | نفوس | موقعیت |
|---|---|---|---|---|---|
| اته میر | ۳۸ | شمال | لوید یځ پاینده خیل | ۱٥۸ | شمال |
| آخند خیل | ۸۲ | جنوب | پا ئین قلعه پایین جاده | ۳٥ . | جنوب |
| ادینه گدل اومیرك | ۸۰ | جنوب | قول فولاد وفتنی | ۱۸ | شمال ختیځ |

## غزنی

آهنگران ۱۲۸ شمال چپه پته ٦۰ لویدیځ

دآهنگر خیلو کلا ۸۰ شمال تالا بحسینی ۱۰۲ جنوب ختیځ

دافضلك کلا ٤٥ جنوب دسراب تلخك ۲۹۸ جنوب لویدیځ

اکبر خیل ۲۲شمال تکبیــــر جای ۲۲ ختیځ

الترغنه ۳۸ شمال دخان اوامیرالدین کلا ۱۳ شمال

الله قلی ۱۸ جنوب دخلیـــــفه تنگی ۸۲۰ شمال

الله یارخیل رشیدان ٤۱شمال‌طلاب (ده‌طلب )٦۷ شمال‌لویدیځ

باپا ساخان ۹۸ شمال جاجــه ۱۳٤ لویدیځ

بارو خیل ۳٦ ختیځ جــانگاه ۸۰ ختیځ

بختیار ۷۰ شمال جانه ۹۲ جنوب

بخشی ۸۰ جنوب جوی آییــن ۵۰ شمال

بگی ٤۰ جنوب چــاده ۲۱۰جنوب

دلوی بلبل کلا ۳۰۰جنوب چاکر واعظ ۹۰جنوب

بلخیان ۸۹ شمال

بوچه حرفی قلعه ۱۷۰ شما ل‌چلمه ۱۱۰ لویدیځ

بند علی ۱۰۵ لویدیــځ، دســرا بکش

قلعه بیددره ۱۸٤ جنوب چوب تراش ۱۸ جنوب ختیځ

بید شاکی ۱۳۱ جنوب هــوج ترکان ۱۲۹ لویدیځ

بیدقول ۸۷ جنوب جــار جــی۷۷ شمال ختیځ

دببرم کلی ۲۲ جنوب خـــتیځدحسن خیل حاجی خان کلــی ٥٥ ختیځ

غزنی

گدول علی مسجد ۸۰ شمال لویدیځ نوده واعظ ٦۹ جنوب
گدول مستوفی ۳۰ شمال نوده جرمتو ۹۸ شمال
گنبد ۸٦ جنوب نوده حسین رضا ٦۰ جنوب
گنداب ۷۳ جنوب ده ملخ ۵۲ شمال
کبنته گنداب ۱۰۵ جنوب نو قلعه ۷۸ جنوب
پورته گنداب ۵۰ جنوب نوده ٦۵ جنوب
گیدر کوه ۸۰ لویدیځ نیکزی ۱۷۵ جنوب
دلعلی کلی ۱۲۰ شمال لویدیځ ورته جفا ۸۰ جنوب لویدیځ
دللندر کلی ۱۵۵ جنوب قریه ولی محمد خان ۱۱۵ جنوب
الیاس ۱۳۷ شمال اوت کلال ده امین ۹۳ جنوب
لیلیه رشیدان ۲۵ شمال هوته قیاق قلعه محمدصدیق ۱۱۳ شمال
مامه ۱۷۵ لویدیځ قریه لاغری ۱٤۱ شمال لویدیځ
پورته میزاخیل ۹۳ ختیځ یمین خیل ۳۸ شمال
کبنته میرزا خیل ۵۰ ختیځ سیدی وال ۷۰ جنوب
مشنگی ۳٤ شمال کبنته کلاخیل ۱۲۰ ختیځ
معین خیل ٤۵ شمال دنور آغا چهار دیوار ۱۵ ختیځ
مالا ۳٤ شمال بساق ۲۵ ختیځ مندیان ۵۵ شمال علی بلبل
۲٤ ختیځ
مندی ٤۲ شمال ناکام بلبل ۸۰ جنوب
ککرك موسی خیل ۱۲۰ جنوب گدول کلی ندری ٤۵ شمال لویدیځ
مهمند ۲۵۰ جنوب محمد شریف خیل شکی ۱۸ شمال
میان تو ۷۸ جنوب دولت رشیدان ۳۵ شمال

سربید (سوبید) ۱۵۸ شما ل ایارخان (الله یارخان) ٤٨ ختیځ
سرخ‌ده رشیدان ۱۰۸ شـمال قلعه شاه محمد قیاق ۸۰ شمال
سرخ‌ده ککرك ١٢٥ جـنو ب شعفراد گان ١٤٢ جنوب
سرده ترکان ۲۵ جنوب شش برجه ۸۰ شمال لویدیځ
سرخی جغتو ۱۱۵ شمال لویدیځ شش کرك ۷۰ شمال
سرخ‌ده ۱۲۸ لویدیځ دمحمد شفیع خان کلی ٥٦ جنوب
سفری خیل ۸۰ ختیځ شلته گولا ۲۷ شمال لویدیځ
سیل برده ۸۰ جنوب لویدیځ شمس الدین ۱۲۳ شمال ختیځ
سفید سنگ ۷۰ جنوب لویدیځ شیخ آکا ١٤٣ شمال ختیځ
سفید کاریز ۲۲ شمال دشیـــرخان کلی ۱۱٦ شمال لویدیځ
قلعه سنگی ۷۸ ختیځ ســفر پشته بلبل ۱۰۰ جنوب
سلیمان رشیدا ۱۸۰ شمـــال طلاب بیگم ۱۵۷ شمال لویدیځ
سلیمان جلگاه ۹۲ شمال لویدیځ طبق‌سر ۹۲ لویدیځ
سنگ زائیده ۱۷۰ جنوب ظریف خیل ٦١ شمال
سیاه قول ۳٦ شمال عاشـــور ٨٤ شمال
سیاه گل ۳۲ جنوب ختیځ محمد علیخان ۱۵۰ ختیځ
سیاه قول ککرك ۱۲۲ جنوب علیخان خیل ۱۱۷ ختیځ
سیاه قول ترکان ۱۱۷ جنو ب الیات ۱٦٣ جنوب
سیدا ۲۰ لویدیځ غـولی تـــالاب ۸۰ شمال لویدیځ
شاخه جلگاه ۹۹ شمال لوید یځ دغلام کلی ٥٦ شمال لویدیځ
شاخه جلیل ۸۲ لویدیځ فتح‌الله خیل ٤٣ ختیځ
ده خدای بخشش ۵۸ لویدیـــځ غلامان وجدید آباد ٦٢ ـ

غزنی

لوړشامی خیل ٤٠ ختیځ قاش‌سیدا ٢٠ شمال ختیځ
خاشا ١٣٥ شمال ختیځ ده‌روزی ١٣٥ —
خدا داد٢٥ شمال لـو یـد یځ ده‌روشن ٢٦ شمال لویدیځ
گدول خلیفه ٦٠ جنوب شا ســی٧٧ لویدیځ
دخندق کلی ٢٥٨ جنـوب ده‌علی گل ٢٤٠ شمال لویدیځ
خوش ابدال ١٩٠ جنـوب ده‌عیسی ١٩٢ ختیځ
خواجه ٣٤٠ لویدیـځ پیـرک‌خیل — —
خواجه خیل ٥٨ جنوب ختیـځ‌ده غلام شاه ٥٠شمال
خوازک خیل ٥٠شمال ده قاضی‌احمد ٩٠ ختیځ
خوشحال ٢٥ شمال لو یدیـــځ‌عباس — —
خواجه خلیل ٦٧ شـمال ده‌قدم ٦١ جنوب
خوش علی ١٣٥جنوب لویدیځ‌ده گوش (جلگا) ٧٠ شمال‌لویدیځ
خیرآباد ٤٠ شمال ختـیـځ ده‌میرزا ٢٢ شمال
قول دارو ٤٥ شمال ده مهـتر ترکان ٥٥ شمال
ده کاکا ٧١ جنوب ده مهتـراحمد ٦٠ ختیځ
دگری شاگی ١٤٧ جنـوب ده‌ملا١٩٠ جنوب ختیځ
لوړ دلخک ٩٠ جنوب خــتیځ‌ده میرخان ١٩٨ جنوب
کبنته دلخک ٤٩ جنوب ختیځ‌ده نورالله ٨٠ جنوب
دوست خیل ٥٠ ختیځ دجرمتوده نظر ٥٣ شمال لویدیځ
دولت خیل ١٤٣ جنـــوب ده‌ولیداد ٢٢٠ شمال لویدیځ
دترکانو ده آهن ٢٠٠ جنوب‌ده‌لالک ٩٩ جنوب
ده آهن ١٧٠ جنوب ده محمدیار ٨٠ جنوب

ده پیوند ۹۲ جنوب قلعه روبا ۹۰ شمال ختیځ
خاك شربت ۴۵ شمال ختیځ قلعه زعفران خیل ۸۶ جنوب
ده خواجه ۱۲ لویدیځ قلعه شادیان ۱۰۴ جنوب
ده دلمحمد ۷۵ شمال شاکیخیل ۹۰ ختیځ
گدول ده‌خوش ۱۹ جنوب سبزپوشان ۵۵ شمال
ده دولت ۱۳۰ جنوب صدپریان ۴۵ جنوب
ده الله داد ۹۲ شمال ختیځ زمان خیل ۱۱۰ ختیځ
قباغ جای ۶۳ لویدیځ قلعه محمد خان ۴۲۰ جنوب
قرغنی (قرغو) ۸۶ لویدیځ قول جینه ۱۳۵ شمال
قریه قزلباش ۴۵ شمال ختیځ قول بیان ۵۵ جنوب
قریه ادرو واز (ادرو خان) ۲۲۷ جنوب ختیځ قول شادان ۲۴ جنوب
قلعه بلند نجیب الله ۵۰ جنوب قول شوره ۱۷۵ جنوب
قلعه تاج محمدخان ۶۵ ختیځ قول فولاد پتنی ۳۵ شمال ختیځ
قلعه حاجی ۷۰ شمال لویدیځ قول گرگ ۹۵ جنوب ختیځ
دمحمد شریف خان کلا ۲۵ شمال الف خان — —

دمحمد نوروز کلا ۱۴ شمال سیاه سنگ ۴۵ شمال
امین ولی صادق ۶۰ جنوب ده میرقدم ۵۰ ختیځ
سرقول ۵۰ لویدیځ سه قلعه ۱۳۰ شمال
شاه بیگ ۶۰ لویدیځ شیر بیگ ۱۵ شمال لویدیځ

غزنی

لوکه ۳ شمال محمد حسین ۱٤ لویدیځ

محمد رحیم خان ۱۵ جنوب

نوده نقیب الله ۷۳ جنوب لویدیځ

پاساقی ۲۱ ختیځ بید شاه – –

محبوب شاه – – ماسرب حسینی – –

یارو واعظ – – شهر نو – –

قلعه دولت قیاق ۱۵ شمال کارگان ۳۰ جنوب

قلعه سرخ حکیم آباد ۱۰۳ ختیځ کاریز رحیم ۲۸ شمال

قلعه سعادت خان ۱۵۲ جنوب قریه محمدکاظم خان ۱۰۰ جنوب

قلعه سنگی ۷٤ ختیځ کنبسته گدك ۸۵ جنوب

قلعه سید علم ۱۰۲ ختیځ کفش حلیمه ۹۰ لویدیځ

قلعه شاه داد ۲۵ شمال ختیځ دکوچی کلی ۱۰۰ جنوب

قلعه شکر ٤۰ شمال کو تل ۵٦ جنوب

قلعه شمشیر ۱۱٤ جنوب

دعبدالله خان کلا ۷۰ جنوب گوشه ترکان ۱۲۹ جنوب

قلعه غریب ٦۵ شمال ختیځ گوشه جرمتو ۱۷۵ جنوب

قلعه حیدر خان ۲۷ شمال کهنه ده ۱۲۲ ختیځ

قلعه کریم ۱۰۵ ختیځ کهنه ده ٤۵ ککرك جنوب

قلعه محمد ۳۰ شمال کهنه ده خوگیانی ۱۲۲ ختیځ

قلعه ملا ۱٤۸ شمال کیچه ککرك ۸۵ جنوب

غزني

قلندر قول جانان ۱٤٥ شمال‌لویدیځ گاچی‌خیل ٥۲ ختیځ
قلندر خیل ۸۰ختیځ گدول‌خان‌محمد ٦۲ شمال لویدیځ
دوست خیل ٥۰ ختیځ گـدول‌تماس ۲٤ شمال لویدیځ
تاریخ قلعه ٦٤ شمال دسلیمان کلا
— —
محمد وال
— —
موکشته خیل — —
پورته شاگی — —
ارکك — —
سیاه بند — —
پتر — —
دیك سند — —

په ۱۹٥۷ کال کی یو ایتالوی‌هیئت په‌جغتو کی‌حفریات‌وکړل‌چی په یونانی اوباختری معمول رسم‌الخط یې‌ځینی نقشـــی ډبـــری، مسکو کات اوداسی نور شیـــان‌وموندل چی مسکوکات یی(دنیکی ملکا یا نامکشاه) پـــه‌دوری اړه‌درلوده دجغتو ځینی نقشی‌کودر کی دبگرام اود غزنـــی دسـرداردغونډی دکودر کوسره مشابهت لری اوساسانی وروستی دور ی‌ته رسیږی. دجغتو دمسکو کاتـــو په‌شانی په‌کابل ،گردیز، کوهدامن‌کی هم‌پیدا شوی‌اومحققین لـــکـــه کرشمن اوداسی نورهغوته‌په‌اومی‌میلادی پیړی پوری اړه‌ورکوی.

دجغتو په‌غرئیزه سیمه کـــی‌لوی خرسنگونه په‌مات یونا نـــی خط موندل سوی لـــومړی‌لیـــك‌یې‌دروز گان دلیك سره شباهت‌لری په‌درو لیکو کی‌کینـــدل شـــوی‌دلومړی دوهمو دریمو لیکـــــو اوږدوالی یی‌په‌ترتیب سره ۷۷ـ ۱۱۰ـ ۸۳ سانتی‌متره‌دی ددغو په منځ‌کی فاصله د۸ـ۱۸ سـانتی‌مترو پوری‌ده دلیکنو حروف یـــی واضح اوخوا

پرو فیسر اوهای سین پـــه١٩٦١ کی ددغی نوشتـــی دری
لیکی داسی ویلیدی :ـ

نمه پهسانسکرت کی احتراماوبودا Namw Bod(احترام بوداته)

دهرمهـ پهسانسکرت کیتقوا Namw Bovarma مذهبی اصول
(دهرمه ته احترام)

سنگه په سنسـکر ت کـــی، Namw Sanga اجتماعی ټولنه
(سنگهته احترام)

دوهمه لیکنه په پنځو لیکوکیده اولیکی یی پهتـر تیب سـره ٤٠ـ٥٧ ـ ٤١ـ ٣٣سانتی متره‌اوږدوالی لری اود هری لیکیپـه منځکی یی ١٠ـ١٢ سانتی متروپوری فاصله راځی ددغی لیکنـی لاندی چی٦٠ په٦٧ سانتی متروکی راځی داسی کلمی وجودلری چی اوس بیخی لهمنځه تللـی دیاوویل یی مشکل دی.

هلموت همباخ اوگوبل دغـــهلیك داسی ویلیدی :ـ

بکو ـیا (زا) بولو Bako(za) Bolo

هغه څوك چیغشی ولی Golotiro

عظمت ـ فریاسر rr (fa) یاسر Garo

ویماشاه (Ho) O. (M) Osha

الغ Ologi Ulugh

پوهاند عبدالحی حبیبی دغـهلیك داسی وایی:ـ

بکه

گهکهتی شاه

پور

ویماشاه

الغ

## غزني

(لوی) کلمه ستره نوشایدچی دغه‌په‌هفتا لیانو اړه‌ونه‌لری اوترکانو په‌دوری مربوط وی خود پوهانــدحبیبی په‌نظر څرنگه چی‌په‌لومړی لیکه کی‌د(بك) کلمه راغلی‌نـــوجغتو شاه پور (دیماشاه)دکوشانی کورنی دبقایاوو څخه گڼی‌نوځکه‌دغه لیك داسلام په‌لومړیو وختو اود کوشانیانو په آخرو وختواړه‌پیدا کوی.

# جاغوری

یوه غزنی سیمه ده‌چی دغزنی‌جنوب لویدیځ ته‌په مستطیل‌شکل واقع ده‌ددغی سیمی اوږدوا لـی‌دشمال ختیځ (دشش پرد بـوم خاکباد دشاخخه) تر جنوب‌لویدیځه‌(دناور کوتل، توغی،دغو هیچـه کلی) دپنځو سوکلیو مترو پـه‌شاوخوا اوسیور یی دشمال څـخه لویدیځ ته‌(دلیلی اومجنون‌کوتل)دچال کلی، ممدك سنګماشی تـر جنوب ختیځ پوری (کوه کـاریزتو، ماګه دبلوداودکلی ) تخمینی ۲۵کیلو مترو په‌شاوخواکـی دی‌یعنی اوږدوالی‌یې‌دشمال‌ختیځ‌څخه جنوب لویدیځ ته‌۵۰کیلو متـــراوسیور یی دجنوب ختیځ څـخه ترشمال لویدیځ پوری د۲۵کیلومترو په‌شاوخوا کی‌دی (۱)

دجا غوریو شمال او شمـــال‌لویدیځ ته مالستان جنـــوب او جنوب ختیځ ته‌یی مقرختیځ تـه‌یی قره‌باغ شمال ختیځ‌ته‌یی ناور جنوب لویدیځ ته‌یې دایه چوپان‌اویوه برخه یې‌په‌شاجوی ،کـلات اوبوری موښتی ده.

مساحت یی ۱۸۵۵ کیلو متره‌مربع اودبحرتر سطح ۲۴۰۰متره

غزنی

دنفوس شماری په اساس ۳۹۵٦۵ تنو ته رسیږی .

دجاغوریو اوږد والی دشمال ختیځ څخه جنوب لویدیځ ته پنځوس کیلو متره اوپسور یې دجنوب ختیځ څخه شمال لویدیځ ته ۲۵ کیلو متره راځی .

دجاغوریو مرکز یعنی ولسوالی په سنګ ماشه کی ده .

سنګ ماشه یوه بیضوی شکله ناوه ده چی شمال ته یی تبر غنک جنوب ته یی حیدرمسکه ختیځ ته یې لومان، خدایداد اولویدیځ ته یې خمیل باغتو اواونی واقع دی ددغی ناوی اوږدوالی دختیځ څخه لویدیځ ته دلسو کیلو مترو په شاوخوا اوپسوریی دشمال څخه جنوب ته شپږ کیلومتره راځی.

دجاغوریو آب اوهوا سړه اوپه ژمی کی یی دتودوخی درجه تحت الصفر (۱۷) سانتیگراد و تـه رسیږی.

دجاغوریو غرونه دخپلو سیمو په نامه یادیږی .

دماکو اوسرخ لوغرونه :ـ دغه غرونه دآبریزی په شکل دجاغوریو اومقر فاصل حدجوړوی.

دلوړ چارګاه غر اودسیداحمدغر :ـ دمالستان اوجاغوریو په منځ کی فاصل حدجوړوی.

دقادغر اود سنګ ماشی ممد ګغر دجاغوریو دمالستان الموتی فاصل حدجوړوی .

دشاه منصور غر: دجاغور یو اومالستان په منځ کی فاصل حد جوړوی .

# غزني

دباد آسیاب غر :ــ دحکو متــیدمرکز جنوبی خواته دشلو کیلــو
متروپه فاصله واقع اوجنوب تــهیی دمقر دگیلان درسنی کلی دی
په جاغوریو کی دارغنداو سیندبهیږی چیهلته دسنگ ماشیدرود
په نامه یادیږی اوهم ددغه ځــایڅخه سرچینه اخلی. دغه سیــنــد
دمیرا دینه اومالستان دد هلـــیدسیمی څخه سرچینه اخلیددواړو
منبع دمالستان دریشه کلی پــه برخه کییوځای کیږی اوپه خپله
مجراکی (دمالستان بادالـــوم )دمالستان دالتوی دری څخه یــو
مرستیال ورسره یوځای کــیږیاوهم دجاغوریودعلودال سیداحمد
دکلی پهبرخه کی ددوو نـــوررومرستیا **لا**نو سره چی ششپــر،
شغلی اوباباکمال دلوړ قول دکلیوڅخه سرچینه اخلی یوځای کیږی
دجاغوریو دسیند سره چی دغــهمرستیالان یوځای کیږی دعلودال
سید احمد دکلی څخــه شــــروعدتبرغنك، خواجی علی، کنبـــته
سبز چوب، سنگماشی. سکه اوبابه څخه تیریږی دتیلوم دکــلی
پهپای کی ددایه چوپان منــطقــیته ننوزی اوپه اخیرکی دکندهار
سیمی ته ځی.

ددی څخه پرته دمالستان دشیرداغ اوپشی دغرو نوری شیلـــی
سرچینه اخلی دجاغوریو داو نــیهچه څخه تیریږی ددایه چوپـــان
ددواب جنگل پهبرخه کــی داولالذکر رود سره یوځای کیږی .

دجاغوریو مځکه دکرهنی دپارهمساعده ده ددی سرهچی غر ئیزه
اوکافی اوبه نهلری بیاییحاصلات لکه غنم جواری ،اوربشی، نخود
مشنگ، ماش، گاذری او داســینور محلی ضرورت رفع کویدقید

پخوانی زمانه کی د(دی)په نامــهویشل شوی دجاغوریو اوقره باغ هزار گان د(دی میرکشه) دسلالیڅخه دی اوپر څلورو برخو ویشل شوی دی:ــ اته، باغچری ،گری، یزدری .

داته ټبرپه سنگ ماشه، چهــل باختو، جاله، بانه، هیچه، دهمرده حوت قول، پاتو اومســکه کــــی دباغچری ټبر پهخدای داد، لومان بوسعید شهزاد، بابه کمال، شغلیششپر بارك کیدگــری ټبـــرپه انگوری، قره،دولت شــاه، داود، حیدر زیرك کی.

دیزدری ټبر پـــه خــاطر سبزچوب، دمیرداد پهتبــر غنـــك، دخواجه علی پهتبر غنك،سیداحمدکبنی اوسی .

جاغوری چی لوی ځمکی ځایو نهاومالچر لری نوزیات افغــانـــی کوچیان ورځی .

دناصرو ۸ کهی دجوزا پـــــهمیاشت کی دسردی ،گیلان اومقر دلاری دگیلان رسنی اودجاغوریوحوتقول ته ننوزی اوهلته خــپل میله ځای جوړوی اود عقرب پــهمیاشت کی بیرته دپښتو نستا ن سیموته ځی .

داحمدزیو ۳۲۶ کهی دجوزا پهمیاشت کی دسردی، دمقردگیلان دلاری دجاغوریو دزیرك شاوخــوااود قره باغ دتمکیڅخه جاغوریو ته ننوزی اود جاغوریو دمنطقــیدکوچیانو پهنامه یادیږی .

دترکو ۱۶۰ کهی دسرطــــاندمیاشتی دلومړنیو شپو ورځـــو څخه دکندهار دلاری دمقر اوقرهباغ دلاری دجاغوریو دسبز نـــالی شش پرسیمی تهننوزی اوتر څوورځو تیرولووروسته ناهورتهځی

محمد په‌نامه یادیږی دجوزا پــــه‌میاشت کی دسردی مقر دلار ی جاغوریو ته ننوزی اود شپــږو اواتو ورځو میلی کولو وروســـته مالستان ته ځی .

دخروتو یوتبر دسلطان محمدملك په‌مشری اودترکو یو تبـــر دگلاب شاه ملك په‌مشری دعبوری‌کوچیانو څخه شمیرل کیږی .

او ډیر لږ وخت په‌جاغور یوکی‌پاته کیږی خودترکو میرزو تبـر په‌جاغوریو کی میله ځای لری اودحیات خان دخیل په‌نامه یادیږ ی دوی دجوزاپه‌میاشت کی جاغوریو ته ننوزی اودعقرب وروسته دمقر دگیلان دلاری دپښتــو نســتا ن‌سیمو ته ځی .

کــوچیان دخپل مسیر پـــــه‌مهمو سیمو کی‌بازارو نه جوړوی چه‌دغزنی دجنوب اومقر بازارونه‌یې ډیر مشهوردی کوچیان پـــر خپلو بازارونو باندی دخــتو دوه‌متره لوړ دیوالونه راگرزوی‌چه‌په دغوکی دنازیو اوناصرو کوچیانو بازارونه ډیر مشهور دی ددو ی تجارتی مالونه لونگــی، ډول‌ډول‌تو کران، پنبی، بوټونه چـــای، اوداسی نوروی تجــارت پیشـــه‌کوچیان سپینی خیمی استعمالوی ددی څخه پرته دکــم‌آب بـــازارچه دکاسی .چغچران اوهـــریرود په ۳۰ کیلومتری کی‌اود چارا سی بازارچه‌دچغچران په‌شمال‌ختیځ کی دبالا مرغاب دسیند په پور تـــنی برخی کی‌واقع دزا بل‌بازارچه‌دپسا بند په‌ولسوالی پــوری مـــر بوطدایـــل بـــازار چه‌دپسابند دخلکو احتیاجات رفع کوی ډیـــر مشهوردی .

دهیواد زیات شمیر نورکوچی‌تجارت کوونکی قبایل هم لـــــه سپینو خیمو سره‌چه‌ایل بازار ته‌راځی دادی:ــ تغـــر (احمد زی)، نیازی، سلیمانـــخیل، احـــمد زی‌خواځك ،ستانیـــزی ،حســـن زی، متپانی ،منگل، ځدران، حسن‌خیل،دولت‌زی، ملا خــیل ،اکاخــیل،

دکوچیانی لاری پرته موټرروه‌لاردمقر دگیلان درسنی څخه جاغوریو ته ځی اود جاغوریو مرکز سنگ‌ماشی ته رسیږی‌ددغه ځای څخه دمالستان مرکز ته‌غځیږی ددغه سرك اوږدوالی دجاغوریو حکومتی دمرکز څخه‌دمقر دگیلان په‌لارد غزنی تر ولایته ۲۲۰کیلو متره اودنمکی‌قره‌باغ دلاری ترمرکزه ۱۶۵مترو رسیږی .

دجاغوریو کلی ۱۲۷ته رسیږی‌چی ددغو کلیو نومونه دنفو سو شمیر اودولسوالی دمرکز څخه‌یی‌دکلیو موقعیت په‌دی ډول‌دی .

آسیاب خورده لومان ۳۳۳ختیځی‌خواته سوخته لومان، هاشم بخت لومان، القوی حیدر ٦٥ جنو ب‌ختیځی خواته، گاومرده، کمرك المیتو ۱۹۰۰ شمالی خواته،الغوم‌قعده‌بوسعید٤۰٦ جنوب‌لوید یځی خواته ابودال، گنبد انگوری۱٤۰۰ تنه‌جنوب ختیځی‌خواته ،چا که بابه قول لومان ۳٤۳ ختیځی‌خواته‌میته‌بابا، بابه کمال ٥٤٤ تنه شمال ختیځی خواته

باغ آهنگر – – سنگشانده ۳٥۹ جنوب
شیخ چغو – – سنگماشه ۲۰۰۰ جنوب ختیځ
درویشان – – توغی سنگماشه – جنوب‌ختیځ
مرغ لانه – – چمبر سنگماشه – جنوب
سبز سنگ – – دولانه سنگماشه ۲۸۷ –
بیك باریك ٤۰۲ ختیځ نوده – –
پای جلگه لومان ۱۱۷٦ ختیځ‌ده‌غولی – –
عملیات

دغلجی قبایلو بیل بناخونه پکښې اوسی اوکلی یی (۳۸) شمیرل سوی دی چی نوم نفوس اود مرکزڅخه یی موقعیت داشانی دی :-
احمد خیل ۱۱۸ تنه جنوب لویدیځ اختر دینار خیل ۲۱٦ تنه شمال لویدیځ .
اخترداد ۲۱۳ تنه شمال لویدیځ اسپاسیت ۱۱۱۸ تنه ختیځی
شاه سکندر ۸۹ تنه شمالی منځی ۲۱۱ تنه شمالی خواته
الکازی ۲۲۱ تنه شمالی معصوم خیل ۱۲۱۸ تنه ختیځی
ترخه ٦۱۵ تنه جنوبی معصوم خیل کریم — ختیځی
جبار خیل ٤۱۳ تنه جنوبی ممی — —
خضر خیل ۵۳ تنه جنوبی نیازی ۷۱ تنه لویدیځی
دینار خیل وړ ۲۱۵ تنه شمالی واصل خیل ٤۸ تنه لویدیځی
ارت دینار خیل ۱۸۹ تنه جنوب ختیځی
اسمعیل خیل ۲٦ تنه لویدیځی فیض محمد دینار خیل ۳۵ تنه شمالی .
واصل خیل ٤۸ تنه لویدیځی دوچینه ٦۰۰ تنه جنوب لویدیځ
لالوخیل ۸۳ تنه جنوبی دولت شارك ۷۰ تنه جنوب لویدیځی
نکازلد ۹۱ تنه جنوب لویدیځی لندی ٤۹ تنه شمالی
سفید ریش جلاد — جنوبی رحمت چورا خیل ۲۰۰ تنه ختیځی
سیدخان خیل ٦۱ تنه جنوبی سنگر خیل ٦۰۰ تنه جنوب لویدیځی
سورکی ۹۱ تنه جنوبی سیدخان خیل ۱۹۰ تنه جنوبی
احمدخیل ۵۲ تنه جنوبی مادزار ۸۵ تنه شمال ختیځی
محمود خیل ۷۱ تنه جنوبی (۱) شهباز خان خیل ۱۵۰ تنه شمالی
غلام رسول ۸۱ تنه لویدیځی قندیل ۵۰۰ تنه جنوبی
گل خیل ٦۳ تنه جنوبی محمدجان ۵۱ تنه لویدیځی
۸۱ تنه جنوبی

# یوسف خیل

دغی سیمی پخوا دکتواز دلوی ولسوالی دبنرنی د ولسوالـــی ددوهمی درجی علاقداری حیثیت درلود اوس دپکتیکا دولایت یوه ولسوالی ده چی دشمالی عـرض البلد په ۳۲ درجو ۲۷ او۳۲درجو ۳۹ دقیقو اود ختیځ طول البلـد په ۶۸درجو ۲۰دقیقو ۶۸ درجـو ۳۴دقیقو کی واقع شمال تـه یې دخربین غر دهیبتی دبنت مځکی (په بنرنی مربوط) جنوب ته یـی دکتواز دسه گانه مځکی یحیی خیلو اوغیبی خیلو سیمی ختیځ تهیـې دپارك دبنت مځکی اوعام نـهـار (بنرنه) لویدیځ تهیـی دخربیـن دغره څوکی ،زوړجر، دسیـی او گزدره واقع دی مساحت یی ۵۵۰کیلو مترمربع اود بحر دســطح څخه (۲۲۰۰ )متره لوړدی .

یوسف خیل یی ځکه بولی چــه دسلیمانخیل ټبر دیوسف خیلــو ښاخ پکښی اوسی .

ختیځ څخه جنوب لویدیځ ته ځی په ژمی اوپسرلی کافی اوبه لـری خو په دوبی اومنی کی یې اوبـه لږیږی اوکله بیخی وچه وی پـه عمومی توګه دغه سیمه هواره ده او مځکی یی دکتواز د نورو سیمو په شان دجیو لوجی دلومړی دوری آخری مرحلی ته رسیږی د بری یی دزمانو په مرور میده سوی خاوره یی توره ژړ بخنه ده اودهرراز بوټو دشنه کولو استعداد لـری دد ی سره چی مځکی یی کافی اوبه نلری اوپه کاریزو اوچینو اوبیږی خـو بیاهم غنم، اوربشی ،جواری ماش اونور حبوبات لری په ځینو برخو کی یی انګور، بادام، توت، سنځلی هم موندل کیږی طبی بوټی لکـه بارتنګ ،زاویل بشیـن ګـلی، کاسنی غوایی ژبه ،مروڅـه اوداسی نور ډیرلری .

نفوس یی دا ټکل له مخی ۸۹۹۰ تنو رسیږی چی په دغو مشـهورو کلیو کی اوسی :-

برات خیل ۹۹۳ تنه جنوب ختیځی خواته

بوخان خیل ۱۲۱۸ تنه شمالـــی خواته

پورته اوکښته جرګنه ۱۹٤۲ تنه جنوب لویدیځی خواته

زمری کوټ ٤۲۱٥ تنه شـما لی خواته

خربین ٤۰۰ تنه شمالی لویدیځی خواته

دخربین مدرسه ٦۰ تــنه شـما ل لویدیځی خواته

خزان ۳۰ تنه جنوب لــوید یـځی خواته

مست ۱٦۰۰ تنه جنوبی خواتـه ملخ ۲۰۰ تنه جنو بـی خـوا تـه

# جانی خیل

جانی خیل پەشمالی ٤٦-٣٢-اوختیځ ٢٣-٦٨ طول البلد او عرض البلد کیواقع مساحت یی٩٨٣ کیلومترمربع اودبحر دسطح څخه (٢٠٤٠) متره لوړدی .

شمالی تەیی دژړغره سلسله اوها خواتەیی داندړو گیرو جنوب تەیی دجعفر ددری دغرو لړ اوپەهاخوایی دوازی خوا غرونه اود خوشامند د علاقداری دجمجمیدکلی برخی ختیځتە یی دکتواز دمرکز سیمی دساربان ،فقیران،غبانه، جعفر اوپەهاخوایی کوچنی گومل لویدیځ تەیی دخوشا مندسیمی دی .

آب اوهوا یی پەعمومی ډولوچه، ژمیی واورین پە پسرلی ډیر اوپه منی کی لږاوریا لری.

جانی خیل دننه غرونه، نلری‌شمالی خواته یی‌کوچنی غو نډ ی اود آب بندغردی چەپه ژړ غرەمشهور دی جنوبی خواتە یی

## غزنی

او آب استادی ته تو ئیــــرېدد غه رود ثخه‌دجانی خیلو دمځکو یوه برخه خړوبیږی مځکی یـــی‌دوازی خوا په‌شانـــی هــــواری او نژادی غرونه نلری، مځکی مـــی د جیولوجی دلومړیو زمانو مخ کی بریښی دمختلفو ډبرو ټوټی پـــه‌میده خاورو اوښتی اوخاوره یـــی دمړو نباتاتو دورسره ګډیدلو له‌کبله حاصل خیزه ده دجانی خیلو کښته ځمکی اوبه‌لــری تـــوری اوژر بخن رنګ لری اود لښتـــیو او ویالو په واسطه اوبیږی ځیـــنی‌کاریزی اوبه‌هم لری دیمه‌یی چـــه کال‌آبادوی ډیرعوا‌ید جـــوړوی .په‌جانی خیلو کی‌غنم، اوبشـــی ، جوار ،می‌مشنګ ډیر کیږی زردالو،سیب اودتوت ونی یوځای اوبل ځای لیدلی کیږی (۱)

دجانی خیلو نفوس ٦٢٤٥ تنه‌اتکل سوی چی‌په ٤٨دغو مشهور کلیو کی‌اوسی دکلیو نـــومـــــونه‌نفوس اود مرکز ثخه یی موقعیت په‌دی ډول دی؛

جلال‌زی ۸۰۰تنه جنوبی خوا تـــه‌دجعفر کلاخیل ٤۰۰تنه جنوبـــی خـــواتـــه کـــلا خیل ۸۰ تـــه –

دفقیر چمبر ۱۲۰ تنه لویدیځـــی‌خواته .

کریم خان – ختیځی‌خواته‌ملنګ‌خیل اوښادی خیل ۲۲۰ تنه شمالی خواته علی‌خان– ختیـــځی‌خواته .

دشیرخان ګډول ۲۰۰تنه شمالـــی‌خواته .

قلندر – ختیځی خوا تـــه‌چمپران ۲۱۵ تنه شمالی خوا ته ملی خیل ۱۲تنه ختیځی خوا ته‌شیرعلی ۱٤۸تنه ختیځی خواته داحمدی کلا ٤۹تنه لوید یـــځی‌خواته .

دسدوکلا ۷۰تنه شمالی خـوا ته محمدامین وشکخیـل ۵۹ تنـــه لویدیځی خواته

محمد ایوب — — —

شکخیل ۴۱تنه لویدیځی خوا تهشین چاه ۱۲۵تنه ختیځی خوا تــه داؤد — ختیځی خواته هستی ۴۰۰ تنه لویدیځیخواته دحاجی یعقوب کلا — لوید یځــیخواتــه .

رسول خان ۶۰تنه جنوبی خواتهمسجد مامی چمبر — لو یدیځی خــواته دتور کلی ۶۹تنه شــمالختیځی خــواته .

زړه کلا — لویدیځی خواته مارزك ۴۰ تنه لویدیځی خوا ته کلاخیل مچك ۴۸تنه لویدیځــــیخواتــه .

تیره ۳۱تنه جنوبی خــوا تـــهبابوخیل ۳۵۰تنه لویدیځی خواته جکان ۴۱تنه جنوبی خــوا تـــهشاه توری اوخنجکی ۲۰۰ تـــنه لویدیځی خواته

دبلوڅو کلی ۶۱تنه ختیځیخواتهشاه طوری ۱۱۰تـــنه لـو یځــی خواتــه .

جان خیل — — خنجکی ۲۰۳تنه لویدیځی خواته

کالا تو — — محمدعلی ۵۹تنه لویدیځی خوا ته

چونی ۲۵۰ تنه ختیځی خوا تـــهدحاکم کلا ۱۳۰تنه ختیځی خواته

کنداری ۵۹تنه جنوبختیځیخواتهکنیزك ۱۴۰تنه جنوب ختیځــــی خواته برلك ۲۴۰ تنه جـــنو ب ختیځی خواته .

فقیران ۹۲تنه ختیځی خوا تـــهنعیم گل ۱۰۰تنه جنوبی خوا تــه کوکمندی ۸۴تنه جنوب ختـــیځ خواتــه

# وازه خوا

وازه خوا یوه دریمه درجـــه ولسوالی ده چه په کتواز پـوری اړه لری دغه سیمه پــه شـــمالی۱۲ـ۳۲ـ اوختیځ ۲۲ـ ٦۸ طول اوعرض البلد کی واقع مساحت یی(۲۳۰۰) کیلو متره مربع اودبحر دسطح څخه (۲۳۰۰) متره لوړه ده

دوازی خوا شمال ته دجانی خیلو دجعفر دغره سلسلی اولمنی اود خوشامند دعلاقداری سیمی جنوب ته یی دسرده ،سرخه ،کوســك مځکی هاخواته یی پښتو نستا نختیځ ته یی دســروندی دغـــره سلسلی چی دشمال څخه جنوب ته دغه مځکی داوړیمی دسیمی په منځ کی پرتی دی لویدیځ ته یی دمقــردناوی غرونه چی دپتنی اود سکرو درو لویدیځ ته واقع دی.

آب اوهوایی په دوبی کی لــړتوده اوپه ژمی کی سړه وی مځکی یی کاریزی دی ځکه چی کافی اوبه نه سی ورکولای نو هرکله دیـمه هم په کرل کیږی .

وازه خوا بنه مال څــــړلری اوسلیما نخیل کوچیان استفاده ځنی کوی داوسیدو نکو زیاته برخه یی همدغه کوچـیان تشکیلـه وی او

غزنی

دوازی خوا نفوس داتکل لەمخی (۹۸۹۲) تنو ته رسیږی چه په ۸۲ مشهورو کلیو کیاوسی دکلیو نوەونه ،نفوس اود مرکز څخەیی موقعیت داشانی دی:ـ

حاجی آدمخیل ۱۰۲ تنه ختیځی خواته .

بته خیل ۸۰ تنه لویدیځی خواته اکرم خان ۸۵ تنه شمال ختیځی خواته برج ۳۰۰ تنه جنوب ختیځی خواته .

اندی ۷۵ تنه لویدیځی خواته بوزی ۶۰ تنه جنوبی خوا ته

بازید ۵۰ تنه شمال لویدیځی خواته پتهنی ۴۰۰ تنه لویدیځی خوا ته

خواجر ۱۲ تنه لویدیځی خواته ورابنی ۱۰۰ تنه لویدیځی خواته

عاشق ۱۸ تنه لویدیځی خواته زنګ خیل ۲۰۰ تنه لویدیځی خوا ته

قبات ۴۵ تنه لویدیځی خواته زرغون ۵۰ تنه لویدیځی خوا ته

ملاکرو ۲۹ تنه لویدیځی خوا ته سپیرکی ۲۵ تنه ختیځی خوا ته

تروه ۱۰۰ تنه شمال لو یدیځی خواته .

شبی خیل ۶۰ تنه لویدیځی خواته تروه کی ۶۰ تنه شمال لویدیځی خواته .

شکورخیل ۵۰ تنه شمالی خوا تەدنجف تنگی ۲۰ تنه جنوبی خوا ته

شینکو وال ۵۰ تنه ختیځی خواته تورتنگی ۱۰ تنه لویدیځی خوا ته

شخیل ۶۰ تنه لویدیځی خوا تەتوروام ۳۰۰ تنه جنوبی خوا ته

شهنواز ۶۶ تنه شمال لوید یځی خواته .

نور مرغا ۲۵ تنه جنوبی خوا ته شهین ۴۵ تنه لویدیځی خوا ته

## غزنی

عمران خیل ـ لویدیځی خواته‌دسرقلم چینه ۲۳ تنه جنوبی‌خواته
عمر خیل ـ لویدیځی خوا ته‌حیات خیل ۶۰ تنه لویدیځی‌خواته
عاشق خیل ۴۵ تنه ختیځی خواته‌خادگاه ۷۸ تنه لویدیځی خوا ته
عبدالمتین ۸۱ تنه ختیځی خواته‌خذیرخیل ۴۰۰ تنه ختیځی خوا ته
عبدالجلیل پستاو ۱۵۰ تنه‌لویدیځی خواته .
خیرآباد ۲۵ تنه ختیځی خوا ته دمهمان اوظفر کلا ۲۰۰ تنه
شمال ختیځ دپتاو کاریزک ۴۰ تنه‌لویدیځی خواته .
کدلی ۲۰ تنه شمالی خوا ته‌کمکی وازه‌خوا ۲۵۰ تنه ختیځی
خواته دملاشامحمد کځخور ۳۰ تنه‌لویدیځی خواته .
کوځك ۴۰ تنه لویدیځی خوا ته گلشاه کاری۸۳ تنه جنوبی‌خواته
گلابی ۱۵۰ تنه لویدیځی خوا ته لیلیزی ۲۱۴ تنه ختیځی خوا ته
لنډی ۸۱ تنه ختیځی خوا ته حاجی دوستی ۱۶ تنه لویدیځی
خواته دمحمد خان کلا ۱۵۵ تنه‌لویدیځی خواته ..
مشوری ۲۵۰ تنه شمالی خواته غټغشی ۱۸۰ تنه لوید یځی
خواته شاه مرادان ۷۱ تنه شمال‌لویدیځی خواته .
مرجان ۳۰۰ تنه شمالی خوا ته جلالزی ۹۳ تنه شمالی خوا ته
منزی ۱۰۰ تنه لویدیځی خوا ته گوراوی ۳۱ تنه شمالی خوا ته
ملایان ۵۰ تنه ختیځی خوا ته گدایوال ۶۲ تنه شمال لوید یځی
خواته .

## غزنی

وچ خواره ۳۵تنه شمالی خـواته‌منکی ۵۱تنه لویدیځی خواته
دین عمر - - سنگین ۲۰تنه ختیځی خوا تـه
ولی - - عربشخیل ۱۸تنه ختیځی خـوا ته
اتم خیل - - مریانی ۲۵۰تنه لویدیځی خوا ته
گوشته ۳۰۰۰ تنه شمال ختیځـی‌خواته آکاخیل ۱٤۸ تنه شـمال ختیځی خواته .

تولی ٤۱تنه شمالی خـواتـه‌جانی خیل ۱۵۰تنه شمال لویدیځی خواته .

چتك ۳۹تنه جـنو بی خـوا تـه‌چلی ۷۱تنه شـمالی خواته
چنارگی ٤۰ تنه‌شمالی لویدیځی‌خواته خودکندی ۱٦تنه شمالی خواته

# دغزنی تاریخی آثار

دسردار دغونډۍ آثار :-

په ۱۳۳۵ هـ ش- ۱۹۵۶ داطلاعاتو اوکلتور وزارت دموزیمو اوتاریخی آثارو دساتلو اوموندلو او ایټالیه دریمې موسسې ترمنځ یوتړون لاس لیك سو چه‌دهغه په‌اساس دغه موسسه په غزنی ،لغمان، بلخ ،سمنګانو کې کیندنې اوحفریات وکړای سی.

ددغه تړون له‌مخې دافغانستان‌او ایټالیه باستان شناسانو دګډ هیئت دغونډۍ په نتیجه کې په‌۱۳۳۶ هـ ش- ۱۹۵۷ کې داستاد علی احمد کهزاد او پرو فیسر توچی دنظر له‌مخې دسردار غونډۍ دکیندنو دپاره منا سبه‌وګڼله سوه. دسردار غونډۍ دمنارو دوچ دښت څخه شروع اودریم مسعود دقصر په‌شاو خواکې دکابل هرات پرلویه لار مخا مخ‌جنوبی پلوته پرته ده(۱)

په ۱۳۳۸ هـ ش- ۱۹۵۹ کې‌دایټالیه شپږ کسیز هیئت او
هیئت په‌ملګرتیا دسردار په غونډۍ کې کیندنې

پیل سوی دغـه هیئت دوبـــرو، کودرکو اوختو مجسمو دلید لـــو
وروسته په امتحاني توگه یـــوه‌کیندنه یاسنداژ وکړچې دد غې
کیندنی په نتیجه کی دیوی لـــوی‌ستوپی دیوالی وموندل سو دغـــو
کیندنو څلور کاله دوام وکړ اوددوو کالو وقفې وروسته په ۱۳۵٦
ه ش ـ ۱۹۷۷ کی دمور تسیو ـ ندی په‌مشری بیا کیندنی شرو ع
سوی نوداېتالیه هیئت دشلـــوکلونو راهیسی هرکال دددوو یـــا
درو میاشتو دپاره دغزنی پـــه سردار غونډی کی کیندنی کولی.
دلومړنیو کلو دکیند نو پـــه‌نتیجه کی‌دشاه ویهاره (شاه بهار)
دمعبد دیوالونه دیو وسیع غولی‌دمرکز لوی ستوپی دبقایـــاوو او
څـــو کوچنیـــو ستـــو پو ســـره‌وموندل سول دغه ستوپی پـــر
څلورو خواوو پته زینـــی لـــری‌دسردار غونډی دغزنی دبودایی
دوری دلویو عبادت ځایو څخـــه‌شمیرل کیږی چی دغه ځای تـــر
اوسه هم دبتخانی په‌نامه یادیږی.

چینی مشهور سیاح هیـــوان‌تسانگ په۷م پیړی کی پخپـــله
سفر نامه کی دغزنی دسنگهار مه(بودایی معابدو) ذکرکوی اووایی
چی څوسوه معابد اودزرو بودایی‌راهبانو په شاوخوا کی هـــلته
موجود ووهمغلته دآفتاب‌پرستانو‌یا (زون) (سون) دپیروانو د څو
معبدونو علاوه یوازی دآشوکا په‌امر لس ستوپی جوړی سوی‌وی
دسردار غونډی دځینو آثـــارودشواهدو څخه څرگند یږی چـــی
دسردار دغونډی بودایی شاهـــی‌معبد یوه دوره اورسو ځیدنه هم
تیره کړی او د استاد احمد عـــلی‌معتمدی دخانمی هروکو دتحقیق

زمانی ورو سته دغــه معبـــداودفینی اومتروك شکل اخیستــی دی دوطن نومیالی مورخ اســتاداحمد علی کهزاد د(هو ویشــکا) کوشانی پاچا دکتیبی لرویه چــی‌دغزنی دوردگو دخوات پــه لوی معبد کی‌موندل شوی داسی‌نتیجه‌گیری کوی‌چی دغزنی دشاه بهار معبد هم‌ددغه کوشانی لوی پاچــا په‌وخت کی آباد سوی دی‌ځر نگه چی دغه‌پاچا ددوهمی میــلا د ی‌پیړی په‌پای کی اوسید نــو گمان کیږی چی دغزنی شاه‌بهار هـــم‌ددوهمی میلادی پیړی په‌پای کی جوړ سوی وی (۱)

خوهغه آثار چــی دســـر داردغونډی څخه مـــوندل ســـوی دفند قستان د۷ـ۸ میلادی پیړی‌دبودایی آثارو سره شباهت لری.

دشاه بهار میدان داسلا مـــــی‌دوری دمخه دشاه ویهار (شــــاه دبهار، شاویهارا) په‌نامه یادیدلی شاه ویهار په‌اصل کی ترکیـبـی اسم دی چه‌ددوو جزو څخه یعنــی(شاه) چی‌دمیلادی دوهمی پیړ ی دبغلان دکانشکاه له‌ډبر لیـکـنوڅخه ترنن ورځی پوری زموږ پــه تولو ژبوکی په ثابتی معنی‌راغلی‌اوبل بهار جزوچی سنسکرت کلمه یی ویهار، ویهاره ده اوبودایـــی‌معبد څنی مراددی .

ادشاه ویهار دکلمی اوموقعیت‌په هکله دوطن ډیرو لیکـوالو او محقیقینو څیړنی کړی خو دپوهاندعبدالحی حبیبی نظـر اوڅیـــړ نه دمنلو وړده چی‌وایی :

دافغانستان په‌تاریخ کی‌دبشار، گلبهار ،شبر، جز، نوبهار، شاه

## غزني

څخه ٥٦ کیلو متره فاصله لری او د کندهار د سرك په اوږدو کی د قره باغ په سیمه کی واقع دی.

دغه سیمه د اسلام را هیسی د دوه سوه کاله وروسته د غزنی دسلطانانو په وخت کی هم د بهار په نامه یادیده د غزنی پاچا هانو د دغی غونډی څخه خپل داخلی او خارجی سوقیات او عسکری رسم گذشتونه لیدل لکه د دغی دوری مشهور شاعر علی ابوا لحسن فرخی چی وایی :

بامن به شه بهار بهم بود چاشتگاه
ماه من آنکه رشك بروزد، دوهفته ماه

گفت این فراخ پهنا دشت کشاده چیست
گفتیم که عرصه گاه شه بی عدد سپاه

گفتا چه خوانم این شه آزاده را بنام
گفتم یمین دولت محمود دین پناه

گفتا کنون کجاست مراده ازو خبر
گفتم به زیر آن مبهن رایت سپاه

گفت آن هزار هفتصدو اندکوه چیست
گفتم هزار و هفت صدو اند خیل شاه

گفت آن زره وران زبر یکی کمند
گفتم بتا ن مملکت آرای رزم خواه

گفتا که مرد خوانه شان یا مهمه تمام
گفتم که سرو یا کمر ماه با کلا

**غزنی**

گفتا که شهنامه دروغ است سر بسر
گفتیم تو راست گیرو دروغ ازمیان بگاه
گفتا ملك همی چه ستانند زخسروان
گفتم ولایت وسپه و گنج و تا جگاه

دسردار غونډی ورو ستنی نوم ددی دسراج الملت والدین دسفر په وخت کی کله چی یی دغه غونډی ولیدله نوم یی باندی کښیښو دل سو امیر حبیب‌الله سراج الملت والدین دوی خیمی اوخرگاه وی پر دغی غونډی نصب کړی.

کوم تاریخی آثار چی دسردار په غونډی کی پیدا سوی دی لسو زرو ته رسیږی چی مهم یی دادی؛

په ۳ ـ او ٤ میلادی پیړی پوری مربوط په برهمی لیك لیکنی.

دپخو ختو خخه دبودا کوچنی مجسمی.

دلویو ۱۰ ـ ۱۳ متره مجسمو پیدا کیدل.

دبرونزی دیوالی نقاشیو، طلایی موادو (دورقشانیو او تزئینی معماریو دپاره) دکودر کوا وسرو ختو دآثارو پیدا کیدل.

څرنگه چی په غزنی کی دحفریاتو په نتیجه کی یو شمیر تاریخی آثار موندل سوی نود کابل موزیم دغزنی آثارو په نامه یوه بیله کوټه ټاکلی چی آثاریی پر دروبرخو ویشل سوی دی.

الف :ـ هغه شیان چی لسمی او دیارلسمی میلادی پیړی ته منسوبیږی لکه څراغ پایی، برنجی چای جوشی برنجی صراحیگانی بیضوی رقمه چلمان لا ستی لرونکی برنجی مجمر اونور.

ب :ـ هغه شیان چی اتلسمی، نولسمی اوشلمی میلادی پیړی

## غزني

(نرگس تربه روی لاله فتاد.)

ج ــ دمرمرو دډبرو نفيس آثاراونور دژيړو، مسو، سپينو زرو قيمتي اوهنري شيان .

دپای منارو نو دحوزی دغیــرمنقولو آثارو لکه ددریم مسعو د قصر، مدرسه،ستونپای، حمامونه‌اونورو څخه څرگندیږي چــــی د جوړولو سبك يې دعبا سيا نـــــومعماری ته ورته دی دمعــــماری توکران يی دگچو څخه په هندی‌تزئیناتو، اوتوږلو ډبرو په هنرو ځینی يی دمرمرو په تخته سنگونو‌په طبیعی ښکلا اوکوفی رسم‌الخط گچو اوپخو خښتو، آهکو او سپنه‌اوداسی نور مواد پکی کارسوی.

دغزنويانو اوغو ريانو په عهدکی ددی‌سره چی‌په تهذیبی لحاظ پر ځينو مستظرفه صنايعو لــکه‌دژوندی حیواناتو پرنقا شیـــو او رساميو اومجسمو جوړولو باندی‌قیود وضع سوی‌وو اود اسلا مـــی دوری دمخه‌ځنی صنايع اشکال اومجسمی مغشوشی اوباطلی ســــوی وی خوبيا هم دغزنوی اوغــوری‌پاچا هانو په قلمرو کی مصور ی سکی اونقاشی چلیدلـــی او لــــه‌رواجه نه‌وی لویدلی منـــــتها د جوړولو طرز اوشکل ته‌یی تغیــررکول کیدی اود اسلامی هنرو- نو اوکمالاتو رنگ‌یی اخیستی‌ووچنانچی دغزنی په‌لویو مساجـدو اوشاهی ماڼيو کی‌دوه ډوله مواج‌اوجلا لرونکی مرمرينی ډبــــرو باندی دځنگلونو حيوا ناتو، جنگی‌آلاتو اوملی پهلوانانو دمــــبارزو داسی صحنی رسم او نقاشی سوی‌وی چی سترگی نه ځنی‌خـــیژی دمثال په‌توگه دکابل په موزيم‌کی‌دغزنی دنفيسو صنايعو يـــو ه

برخه یی پهٔ‌ډیر کمال او جمال داسی حکاکی اوسنگترا شی‌سوی ده چی کورټ مصنوعی نه ایسی‌او درسم اوحکاکی پهٔ‌منځ کی یی پهٔ‌مشکل توپیر کیدلای سی.

منارونه :ــ

لومړی منار دروضی جنوب ته‌واقع اوهغه ثالث مسعود بن‌سلطان ابراهیم بن‌مسعود بن سلطان‌محمود جوړ کړی اوداسی لیکنه لری :ــ

(بسم الله‌الرحمن الر حیم؛ سلطان‌المعظم ملك الاسلام علاؤالدوله والدین ابوسعد مسعود بن ظهیرالدوله ابراهیم خلدالله ملکه)

دوهمه مناره چی دغزنی دښارلوری ته‌دسړك پرغاړه واقع ده بهرام‌شاه بن مسعود ثالث جوړه‌کړی‌او داسی لیکنه لری :ــ

(بسم الله‌الرحمن الرحیم ؛السلطان‌المعظم ملك الاسلام یمین الدوله امین الملك ابوالمظفر بهرام شاه‌خلدالله ملکه.)

# دغزنو یا نو د دوری مشاهیر

غزنویان نه‌یوازی زموږ دهیوادسیاسی، اجتماعی او اداری چارو دسمون اوملی حکومت جوړو لــوله‌پلوه هسك مقام لری اویو لوی سلطنت یی‌دشمال څخه ترسردریااوخوارزم اود جنوب څــخه دبــلو چستان تر سواحلو اوکاتیار اودختیځ څخه دګنګا اولویدیځ څخه تر اصفهان ،عراق اوهمدان پوری‌جوړکړی وو بلکه‌دعلم اوفرهنګ شعر اوادب په‌خپرولو اوتشویقولوکی یې مهمه برخــه درلوده او درباریی دصلو،مقامونو اوخلعتونودورکولو علماو اوفضلاو دقـــدر کولو له‌کبله دمنځنی ختیځ دعلم‌اوادب لوی مرکز ګڼل کیدی چی دغه تولیی دکمال اوجمال درجی‌ته رسیدلی وو .

دغزنی تولو اکمنانو د تــوجه‌اوهمت په‌اثر یوشمیر داسی مهم عرفانی، تاریخی اوعلمی آثــارراووتل چی‌دنړی په پوهنتو نــو او مدرسو کی تراوسه دلوستلو وړاوددغی دوری عمارات او مســکو کات اونور مستظرفه صنایع چــی‌دمنارونو ،قــبرو نو دسر لوحــو نقاشیو په خیرپاته دی ز مـــوږدفرهنګی اوثقا فتی افتخارا تــو څخه ګڼل کیږی (۱) نوکه هـــم‌دلته دغزنی دتولو اکمنانو دعلـــم دوستی په منظور ددو ی لنـــډه‌یادونه دغزنو یانو دمشاهیـــرو دمخه ذکر شی بیځایه به‌نه‌وی .

غزنویان ۳٦٦ ـ ٤۹۲ ه ق= ۹٦۲ـ ۱۰۹۹ میلادی ؛

الپتګین ۳۵۱ ه ق = ۹٦۲ اسحق ۳۵۲ ه ق = ۹٦۳

بالکاتکین ۳۵۵ ه ق= ۹٦٦ پیری تکین ۳٦۱ ه ق =۹۷۲

سبکتګین ۳٦٦ ه ق = ۹۷٦ اسمعیل (اوه میاشتی) ۳۷٦ = ه ق = ۹۹۷

سلطان محمود کبیر ۳۸۸ق =۹۹۸ میلادی.
سلطان محمد ۴۲۱ق = ۱۰۳۰ سلطان مسعود ۴۲۱ق= ۱۰۴۰
سلطان مودود ۴۳۲ق= ۱۰۴۸ سلطان علی ۴۴۱ق = ۱۰۴۸.
سلطان عبدالرشید۴۴۱ق=۱۰۴۹ سلطان فرخزاد ۴۴۴ق =۱۰۵۲
سلطان ابراهیم ۴۵۹ق= ۱۰۹۹(۱)

## ابو ریحان محمد بن احمد البیرونی

دی په ۳۲۶ـ ۹۷۳م په‌خوارزم کی زیږیدلی اوپه ۴۴۰کی په غزنی کی مړدی‌ده د۴۰۸ وروسته‌دسلطان محمود غزنوی سره ځو واره هندته مسافرت وکـړ اوسنسکرت ژبه یی ښه‌زده کړه دهندی علماوسره دمجلسونـو اومباحثو په‌اثنا کی‌یی په‌تاریـخ ، ریاضی ،جغرافیه طبیعی علو مـو کی خپل معلومات زیات کړل اود خپل کتاب (تحقیق ماللهند مـن‌مقوله مقبوله فی‌العقل اومرزوله) دپاره لازم مواد برابره کړه اوهغه‌چی هندوانو دیونانی کتابو څخه لکه اصول اقلیدس المجسطـی بطلیموس، کتاب اصطرلاب څخـه ترجمه کړی‌وه هغه‌یی مطالعه اوتصحیح کړه اود سنسکرت څنی کتابو نه لکه (اسامیکا سـو تره) چی دمخلوقاتو داصل څخه بحـث کوی او (پوتانجلی) چی‌دجسمانی‌علایقو څخه دروح دنجات بـحث کوی په‌عربی ترجمه کړه .

دالبیرونی مشهور آثار دادی؛

زیچ خوارزمی ،ابطال البهتان‌بایراد البرهان علی علل خوارزمی جوامع الموجود لخواطر الهنـو دفی حساب التنجیم، کتاب مقا لید

الاقاویل لاستخراج التحاویل،مفتاح علم الهیئت، تحدید نهایات الاما
کن تصحیح مکانات المسا کن،منصوبات الضرب، تحصیل الشعا
عات بابعد الطریق عن الساعات،کتاب التفهم لادایل ضاعت التنجیم
آثار الباقیه عن القرون الخالیه اونور ډیر کتابونه اورسالی (۱)

چهار مقاله داحمدبن عمربن علی نظامی عروضی سمر قندی تالیف
۵۵۰ هـ ق په شاوخوا کی چی مرحوم محمدقزوینی پرهغه مقدمه
لیکلی اوتصحیح کړی یی ده او په ۱۳۲۷ هـ ق کی په قاهره کی چاپ
سوی ده اویوځل بیا په تهران کی په ۱۳٤۱ هـ ش کی خپره سوی
ددغه کتاب په ٥٤ مخ د(حکایت۲)ترعنوان لاندی دالبیرونی دپوهنی
په هکله داسی لیکلی:ـ (آورده اند که یمین الدوله سلطان محمود
بن ناصرالدین به شهر غزنین بر بالای کوشکی درچهاردری نشسته
بود بباغ هزاردرخت، روی به ابوریحان کرد وگفت من ازین
چهار در ازکدام در بیرون خواهم رفت؟ حکم کن واختیاران بر پاره
کاغذ نویس ودر زیر نهال من نه.واین چهار درراه گذر داشت ابو
ریحان اصطرلاب خواست وارتفاع بگرفت وطالع درست کردوساعتی
اندیشه نمود وبرپاره کاغذ بنوشت ودرزیر نهالی نهاد،محمود
گفت: حکم کردی؟ گفت کرد م محمود بفرمود تاکننده تیشه وبیل
آورند بردیواریکه بجانب مشرق است درپنجمین بکندند وازان در
بیرون رفت وگفت آن کاغذ پاره بیاورند بوریحان بروی نوشته
بود که. ازین چهار را هیچ بیرون نشود بردیوار مشرق دری کنند

# ابوالفتح بستی :

دسبکتکین دعصر سر دفتراومشهورو علماو څخه دی چی دهغه دمړینی وروسته تر ٤٠٠ پور ی‌دسلطان محمود غزنوی سره په همدغه خدمت لگیاوو دعوفی‌لباب‌الالباب اویتیمة الدهریی ډیری قصیدی راوړی دی اوپه ٤٠١ کی‌په بخارا کی مړدی دی دعربی او دری ژبو دلویو شعراو په‌لړ کـې‌شمیرل کیږی دعربی شعر نمونه یی داده ؛

نصیحتکم یاسلوك الارض لاتدعو

کسب المکارم بالاحسان ولجود

والغضو بینکم ونجم فی‌شرف

لایختضی‌باختلاف البیض والسود

هذا ذخائر محمود قدانتهت

والا نتهاءلنا فی ذکر محمود

دایی عربی مقوله ده؛— من اطاع غضبه اضاع ادبه .

اجعل الناس من‌کان الاخوان‌مذلا وعلی السلطان مدلاء

من اصلح فاسده ارغم حاسده‌حدالعفاف الرضا باالکفاف

الرشوه رشاء الحاجات.

دادری شعر نمونه یی ؛—

همه به‌صلح گـرای‌و هـمه‌مدار کن
که از مدار کردن سـتـوده گردد مـرد
اگرچه قوت داری وعـدت بسیـار
بسوی صلـح گرای وبگرد جنگ مـگـرد
نه هرکه دارد شمشیر حرب باید رفت
نه‌هرکه‌دارد پازهره زهر بـاید خـورد
هرچند که درویش پسرنغزاید
در چشم توانگران هـمه چغرایـد (۱)

---

۱ـ آثار الوزرا تالیف سیف‌الدین حاجی بن‌نظام عقلی صفحه ۱۴۸ چاپ تهران ۱۳۳۷ . لباب الالباب تالیف محمد عوفی صفحه ٦۳ چاپ اتـحاد تـهران اسفند ۱۳۳۵ .

## ابوالفضل بیهقی :

ابوالفضل محمد بیهقی دحسین‌زوی دسلطان محمود غزنوی ددیوان رسالت نومیالی او فاضل‌دبیر اودستر اونامتو دبیرخواجه ابونصر مشکان اوسلطان محمودددیوان رسالت درئیس شاگرد اوپه دری‌ژبو کی‌دخورا مشهورومورخانو څخه وو دی‌په ۳۸۵ ه یا په ۳۸٦ کال دخرا سان‌دبیهق دحارث آباد په‌کلی کې زیږیدلی (۱) اوپه ٤۰۷ ه‌کال دصفری په‌میاشت کی وفات شوی دی .

ابوالفضل بیهقی دسلطان عبدالرشید په زمانه کی درسالت ددیوان رئیس‌وو خو څه مو ده‌وروسته ددربار یانو درقابت او دسیسو په اثر معزول اوبندی سواوده اموال (تومان) یا (یونان) نومی مریی دپاچا په‌حکم چور کړل‌چی په‌هغو مالوکی بنایی دده‌ځنی مهمی اوقیمتی تاریخی لیکنی هم‌وی چی دده په‌قول که‌هغه لیکنی له‌منځه نه‌وای تللی تاریخ بیهقی به‌بله بنه غوره کړی وای اودی دهغو لیکنو په‌تلف کیدو داسی‌خواشینی څرگند وی .

(... وهمه نسخه ها من داشتم وبقصد ناچیز کردند ودریغا و بسیار بار دریغا که‌آن روضه‌های رضوانی برجای نیست که این تاریخ بدان چیز نادر شدی ونومید نیستم ازفضل ایزد عز ذکره که آن بمن‌باز رسد تا همه نبشته آید .تاریخ بیهقی ۲۹٤مخ)

## ابوالنصر منصور مشکان غزنوی

دغزنو یانو ددربار دنومیا لیو دبیرانو او منشیانو څخه وو ځنی

## غزنی

سلطنت غزنویان په ۲۹۹ مخ۱۳۳۳ کال چاپ کی لیکلی :ــ

(... در غزنه نیز محلی الا ن بنام موشکان وموشکی موجود است ودر غور دره‌ایست زیبا که‌بنام (مژگان) یاد میشود ابو نصر مژگان درسال ٤۰۰ در خدمت‌دولت غزنوی وارد شد وسی‌سال این عهده را درکمال عزت‌وحشمت‌انجام نمود واز خیر خواهان دلسوزان وناصحان سلطان محمودومسعود وآن‌پدر وپسر در کارهای بزرگ باوی مشورە‌مینمودند بر رای وتدبیر اواعتماد داشتند ...)

ابونصر مژگان په ٤۳۱ کال‌دفالج په‌ناروغی مړشو بیهقی‌دده دمړینی په‌هکله داسی وایی .

ختمت الکفایه والبلاغه والعقل به .

دی چی‌د هند دفتوحا توروسته غزنی ته‌راغی او ډیر ثروت اوحشمت یی موند لی‌وو په‌بلخ کی‌یی ښکلی باغ جوړ کړ اوسلطان محمود دهغه درناوی‌په نسبت دباغ‌عوارض ورمعاف کړل اوبیهقی یی په‌خپل اثر کې‌په فضیلت اودرایت یادوی .(۱)

---

۱ــ تاریخ دیالمه وغزنویان‌تالیف عباس پرویز صفحه ٤٦۷.

## ابوعبیدالله محمد غزنوي

دغزنی دمشهورو علماوو څخه‌وو چی دوه کتاب یې دختم‌الولایت اونوا درالاصول په‌نامه لیکلی دی‌دامام اعظم ابوحنیفه (رح) ډیر مخلص اونـږدی ملـګری‌وو پـه‌تفسیر یی هم‌لاس پوری کړی‌وو خوژوند یی وفا ورسره ونه کـړه‌اوپه ۲۵۵ هـ کی په‌غزنی کی مـړ اوښخ‌سو (۱)

## ابو عبدالله مقري ثم غزنوي

داحمد زوی اود محمد مقـری‌لـمسی یـو متقی اوپرهیز ګـار عالم‌وو دابو یوسف بن الحسن اوعبدالله خرازی اوخواجه مظفر شاه کرمانشاهی اوجرید ابن عطا سره‌یی لیدلی وو دی یوځوا نمـرده اوسخی شیخ وو چی دپلارپنځوس‌زره دیناره په میراث ورته پـاته سوی‌او ټول‌یی پرمساکینو اوبیوزلانو وویشل دی په‌۳۶۶هـ کـې مړدی .

## ابو العلا غزنوی

وفات مرثیه ویلی‌ده دی‌د۴۹۱ په‌شاوخوا کی مړدی (۱)

# ابو الفرج عالی غزنوي

ابوالغرج عالی غزنوی :ـ
دغزنوی د وری دمشهو روعالمانو اوادیبانو څخه‌وو، سلطان ابو شجاع فرخزاد دناصر الدین‌دزوی په‌وختو کی د مملکت (اشراف) شغل‌په‌ده اړه در لو ده‌بیهقی دده په‌ستاینه کی وایی:ـ
(... دخواجه ابوالغرج عالی‌بن‌المظفر ادام الله عزه که امروز در دولت فرخ سلطان معظم ابوشجاع فرخ زاد بن‌ناصر الدین اطال‌الله بقائه ونصر اولیائه شغل‌اشراف مملکت اودارد ونایبان او واو مردی است درفضل وعقل وعلم وادب یگانه روزگار .)

# ابو الفضل محمد سجادی غزنوي

دطیغور سجاوندی غزنوی زوی‌اود خپل وخت دنومیالیو پوها نو څخه وو.
مشهور تالیفات یی دادی :ـ
کتاب وقوف ؛ په قرآن کی‌دوقف دځایو په‌شرح کی .
کتاب الوقف والابتداء؛ دوقف‌دډولونو په‌شرح کی.
کتاب الموجز دوقف دډولو نو په‌باب .
کتاب عین المعانی ؛ دسبع‌المثانی په‌تفسیر کی دی په ۵۶۰ ه کی مړدی .

# ابوالقاسم ابی جعفر غزنوی

داحمد زوی اود محمد مقری لمسی اود ابوعبدالله مقری وږور

په ۳۷۸هـ کال مړ دی شیـــخ سلمی ویلی دی چـې ؛ ما پــه طریقت کی دده ساری نــه دی لیدلی.
دابن عطار جریری او ابو علی رود باری اوابوبکر بن سعدان او ابوبکر ممشا سره یی کتلی دی.

## ابو المحامد غزنوی

دمسعود زوی دمحمد لمســی دزکی غزنوی کړوسی وو چـــی دزیات تبحر له کبله په سید العلماء مشهور وو دی دغزنویانو ددوری دمشهورو مولفینو اولیکــو الــو څخه وو (۱)

## ابو محمد عبداله غزنوی

ددوغ آبادی زوی دسلــطان مسعود غزنوی په دیوان رسا لــت کی لیکوال وو ثعالبی دی دیـــرستایلی دی په عربی ژبه یی هــم شعر وایه اودا تو ته یی دسلطان مسعود په ستاینه کی ویلی ده :ــ
لایطمعن احد فی الملك یملــکه والسیف فی ید مسعود ابن محمود
سقی الکلمات کئوس الموت نزعة علی غناء صهیل الضم القود (۲)

## ابو محمد عبداله ناصحی غزنوی

امام ابو محمد عبدالله دحسین ناصحی زوی دسلــطان محـــمود غزنوی په وختو کــی دسلـــطان مسعود تر وخته قاضی القضا ت وو په حدیث ، تفسیر او فقه کې یی لوی لاس درلود اوده ته یـــې دهغه وخت دحنفی مذهب امــام وایه اوپه ٤٤۷ هـ مړدی (۳)

## ابو المعالي عبدالرب غزنوي

دمنصور زوی داسماعیل لمسی یو حنفی عالم وو چی په ۵۰۰ هـ کی مړدی اود مختصر القدوری په شرح کی یی یو کتاب دملتمس الاخوان په نامه لیکلی دی.

## ابو المعالي محمد غزنوي

دعبیدالله زوی دغزنویانو پــه دربار کی یی ژوند کاوو په ۴۸۵هـ کال کی یې یو کتاب دکتاب الادیان په نامه لیکلی اوچاپ شویدی (۱)

## ابو المعالي نصر الله غزنوي

دمحمد زوی اود عبدالحمیـــدمنشی لمسی دغزنی دلـــو یـــو شاعرانو اولیکوا لـــو څخـــه وودبهرام شاه غزنوی په وختو کـــې یی ۵۱۲ ـ ۵۴۷هـ دهغه پـــا چـــاله‌خوا په دیوانی چارو کی ګډون درلود اود همدی پاچا په‌تشویـــق‌یی کلیله ودمنه مشهـــور کـــتا ب له‌عربی څخه په‌دری ژبه واړا وو اود بهرام شاهی کلیله اود منه په نامه مشهور سو که څه‌هم دخسروملك په‌وخت کی دوزرات مـــرتبی ته ورسیدخو څه‌وروسته‌دمخالفینو په شکایت بندی سو هم هلته پـــه زندان کی‌وفات سو (۲)

## ابو النصر سعدغزنوي

دعبدالله انصاری زوی اود ابی‌القاسم غزنوی لمسی حنفی مذهب لوی عالم‌وو دوه اثریی زیـــا ت‌مشهور دی ،

کتاب الغرائب والغوا مض الملتقطات (۱)

# احراری غزنوی

عبیدالله غلام خواجه احرار غزنوی دحضرت قلندر شاه زوی دمقری میافتح محمد لمسی په ختهه اندړ په ۱۲۹۲ ھ ق کی دغزنی دبر جکی په کلی کې زیږیدلی متداوله علوم یې په کندهار اوغزنی کی زده کړی اود یوشمیر تالیفاتو خاوند دی چې مشهوریې دادی:- رقعة الفواشی شرح ستتمة الحواشی، پر خیا لی باندی شرح، پر تفسیر بیضاوی باندی شرح، ازالة الاوهام، تحفة الاخیار، شریعت الاظهر شرح فقة الاکبر، مثنوی رنگین، فیض قلندری، أنوار فتح محمدی، گلشن أسرار وبیان الا سرار دشعر دیوان یی په ۱۳۳۱ ھ ق کې په لودیانه کی چاپ سوی دی په ۱۳۰۰ کی په غزنی کی مړدی (۲)

# احمد بن حسن میوندی

ابوالقاسم یا ابوالحسن خواجه احمد دحسن میوندی زوی په شمس الکفاة ملقب دسلطان محمود غزنوی اود هغه دزوی سلطان مسعود غزنوی دلویو سیا ستپوهانو او درباریانو څخه وو اود محمود غزنوی رضاعی ورور وو په ۳۸٤ کال چې محمود غزنوی ته دخراسان امارت وسپارل سونو احمد یی ددیوان رسائل مشر وټاکه او بیا دبست اورخج عامل او وروسته مستوفی مما لک

## غزنی

اود نظامی دیوان عرض دمشـــر په‌حیث وټاکل سو ښوچی په ٤٠٤ کال تر ابوالعباس فضل ابن احمداسفرایتی ورو ستـه دسلـــطان محمود غزنوی لـه‌خوا د وزار ت‌چاری ور وسپارلی سوی او تـر ٤١٦ کال پوری دسلطان محـمودپه دربار کی دپوره واك‌خاوند وو خو بدخواهانو یی په ٤١٥ﻫ کـی‌دسلطان محمود غزنوی فکروړاوه اود کاره ښـخه یی معـــزول اودکشمیرو دکالنجه په کوټ کــې یی بندی کړ ،اود سلطان محموددژوند ترپایه هلته بندی پـا تـه سو اوسلطان‌مسعود دپلار دمړینی‌وروسته دبنده خوشی کړ حیثیت اورتبه یی بیرته وراحیا کـــړه‌اود ژوند ترپایه پوری دغـز نی ددربار دلویو اراکینو ښخه گـڼل‌کیدی .

شعرونه‌یی ویل ډیر بلیغ اوفصیح‌لیکوال وو.

خواجه احمد په‌عربی او دری شعرونه ویل :ـ

دعربی شعر نمونه‌یی :ـ

وصهفهصف لدن المعاطف نصبه    فی حسن طاؤس بدر وبکا س
عانقة متمنطـقا بـود اعــنا    لحسن بهـســن زینـه ولـبا س
فتما یلیت اعطافـه منتبخـترا ء    فوفعت‌بالوسواس فی الوسواس

دری :ـ

ای جوانی مرانگر که چه گفت    گفت؛ ای‌پیرمن چـه فرما یـــی
گفتم؛ ای‌دوست ساعتی بنشین    گفت؛ من‌رفتم وتو زود آیـــی
بشراب وکباب ورنـگ خضاب    بـاز ناید گذ شـــته بـرنا یی

دده وزیر احمدبن حسن میو نـدی‌قاضی سیف‌الله وگماره چی‌دپښتو ژبی الفبی جوړه کړی نـو موږ‌ی‌قا ضی دعربی ، پارسی ، پنجا بی سندی دالفباوو په مرسته دپښتوژبی دږغونو دپاره توری وټاکل) دی د۴۲۴ هـ ق کـال دمحرمـــی‌دمیاشتی په‌لسمه نیټه په هرا ت کی ناروغ سو اود صفـــری پـه‌میاشت کی وفات سواوجنازه یــی کی کابل‌ته راوغوښت‌سو اودشاهی‌مدرسی ،مدرسی‌ورکړه‌سو (۲).

## احمدجان‌اخندزاده‌توخی:

دکندهار دزابل دمتبحروعلماؤڅخه ووچی په‌منقو لو کی یــــې لوی لاس درلود دامیر حبیب اللهخان سراج الملة والدین په عصر کی کابل ته راوغوښت سـو اودشاهی مدرسی،مدرسی ورکړه‌سوه

## احمد غز نو ی :

دمحمد زوی دمحمود لمســی‌دحنفی مذهب دلویو امامانو څخه ووچی ډیر تالیفات لری. کتا ب‌اروضة فی اختلاف العلماء روضة المتکلمین فی اصول‌الدین. مقدمه‌غزنویه په‌فقه کی‌په ۵۹۳هـ کــې وفات سوی دی .

## ابوالنجم ایازا یماق:

دی دسلطان محمود، مسعـوداومو دود ددربار دلویو ندیما نو او دوستانو څخه گڼل کیدی څرنگه‌چی پرسلطان محمود ډیر گرا ن وو نو دگرانښت اندازه یی‌افسانواوډول ډول روایاتو ته رسیدلـی ده دی په ٤٤٩ق‌م دربیع الاول په‌میاشت کی وفات اوپه لاهــو ر کی ښخ دی .

# ابو علی سینا

نوم یې حسین دعبدالله زوی دسینا لمسی کنیت یې ابو علی اولقب یې شیخ الرئیس دی چې په ۳۹۱ هق کې په افشنه کې زیږیدلی او دغه کورنی په اصل کې دافغانستان دبلخ ده چې بخارا ته تللی اود سامانیانو په عهد کې دنامه څښتنه وه دی دخپل عصر دنابغه پوهانو څخه ووچې په لس کلن (عمر ) یې ټول ادبی علوم، صرف، نحو ،بیان، لغت اود کلام الله تفسیر پای ته ورساوو اواستاد داستادانو څخه سولکه چې خپله وایی:ـ (... ایسا غوجی مې دناتلی څخه شروع کړه په فلسفه کې می دقت اوتحقیق داسی ځای ته ور ساوو چې ناتلی د خپل پوهی او فضل سره راته حیران پاته سو هره مسئله چې به استاد طرح کوله ما به ترهغه په ښه توګه حقیقت ته رسوله ما دناتلی څخه داقلیدس دهندسی پنځه شپږ شکله ووایه اوپاته می خپله ز ده کړه بیا دبطلیموس دهیئت مجسطی می ووایه کله چې یې دمقدمی څخه فارغ سوم اوهندسی اشکالو ته ورسیدم ناتلی زما دتدریس څخه عاجز سو نودخپل ځان څخه می دکتاب دموضو عاتو په حل شروع وکړه ډیری مسئلی چې استاد نه په پوهیدی ماور وښودلی..)

(دانشنامه علای صفحه ۱٤)

په ۱٦ کلن سن دلویو طبیبانو څخه شمیرل کیدی اوزیاتو طبیبانو یې شاګردی قبوله کړه هغه وخت چې نوح بن منصور سامانی ناروغه سواو ټول طبیبان یې دعلاج څخه عاجز سول ده یې

## غزني

صندوقو نه اوړل سوي‌وه څـنی‌يی په‌ادبياتو ، څنی يی په‌طبو او
نورو متداوله علومو اړه درلـوده‌دپخوانيو کتابو فهرست مي‌مطالعه
کړ اوهريو چي مي‌غوښت کتابدار به‌را کاوو داسي کتابونه مـــي
وليدل او وويل چي‌تر اوسه مـــي‌نه‌ليدلي اونه ويلي‌وو حتی نـوم
يی‌هم نه‌وو اوريدلی کله‌چي (۱۸)سن‌ته ورسيدم د ټـولو علومـــو
دزده کړی څخه فارغ‌سوم اوددغه‌وروسته بيا ماته څه ځر گـــنده
نسوه کوم تفاوت چي دهغه وخت‌څخه زه‌په ځان کي‌وينم دادی چي
په‌هغه وخت‌کي مي حافظ ډيـــره‌اوحاضره وه اونن مي‌فکر روښانه
اومعلومات پاخه دي خوشي نه سم‌پرزياتولای .

دده مشهور اثرقانون دنړی په‌زياتو ژبو يوژبو لکه لاتينـــی ،
انگليسی ،المانی، فارسی ،اردواونورو ترجمه سوی دی‌د۱۹پيړی
ترنيمايي پوري په‌زياتو پوهنتونو کي‌لو ست کيـدی آثـــار يـــی
چـــی ۲۰۰ تـــو کـــو تـــه‌رسيږی دارستو دآثارو څـــا ی
يی‌نيولی دی ارسطو ته لـــو مړی‌معلم اوابن سيناته ثانی معلم‌وايی
دشيخ داکتشافاتو او اختراعـــاتو په‌هکله دده شاگرد ابوعبيد وايی؛

(... شيخ برای رصد آلا تـــی‌اختراع کرده بود ودرهر کتا ب
ازکتب رياضی مسايلی جديد که‌نتيجه استنباط فکر توانايی خـود
بود بران افزوده بوده شـــکل دراختلاف منظر، به‌مجسطی چيزهای
ازعلم هيئت آورد که تاآنو قـــت‌کسی نبرده بود دراقليدس شبهه
های دارد درارشما طيقی خاصيت‌های خوبی استنباط کـــرده ودر
موسيقی مسايلی آورده که عقول‌از استنباط آن قاصر وغافل بوده

پەدربار کی ځنی نومیالی عالمانلکه ابوریحان، ابوالحسن خمار ، ابونصر عراقی اوابو علیــــسیناوسی نودهغوی درا بللو دپــاره یی ومامون خوارزم شاه ته دحسین بن علی میکائیل پەواسطه داســی لیك واستاوو :ــ

(... شنیــدم کـــەدر مجلس خوار زمشاه چند کس انــد زاهل فضل کەعدیم النظیرند چون فلانوفلان باید کەایشان رابه مجلس ما فرستی تاایشان شرف مجلسماحاصل کنند ومابه علوم وکفایــت ایشان مستظهر شویم وآنمنت رااز خوارزمشاه داریم .)

مامون دخپل دربار پــو هــانراوغوبنتل او ورته ویویل :ــ

(محمود قوی دست است ولشکر بسیاردارد وخراسان وهندوستان ضبط کرده است وطمع در عراق بسته من نتوانم که مثـــال اورا امتثال ننمایم وفرمان اورا بـــەنفاذ نەپیوندم شما درین چەگوئید

ددوی څخه دری تنه یعنی ابــوریحان ،ابوالحسن خمار اوابونصر عراقی دناز اونعمت او صلود پەلاس راوړلو دپاره دمحمواد غزنوی دربارته ورغلل خو ابوعلی سینـــااوابو سهل مسیحی نه ورغلل اود مامون پەمرسته ځنی پټ ســو لهغه وخت چی سلــطان محـــمود غزنوی دابوعلی سینا د پتېدلــوڅخه خبرسو نوده دنیولو امر يي وکړ پەدی وختکی ابوعلی سینادابیورد، طوس نیشاپور څخـــه گرگان ته رسیدلی وو اوهمد لتەشمس المعالی قابوس بن خمکیر حکومت کاوو ابن سینا دقابوسدخپلوانو څخه یوتداوی کـــړ او وروسته دی دعلاو الدوله محـــمدحضورته ورغیاوبیا دشمسالدوله

پرځای کښېنوست ابوعلی سینا اصفهان ته ولاړ اود علاو الدوله بن کاکو په دربار کې ی داراکینو او خپلوانو ښه وګر ځید اوخپل زیات کتابونه یی دهغه په نامه ولیکل اوپه ٤٢٧ کی وفات سو (١)

دشیخ الرئیس بوعلی سینامشهور آثار دادی

کتاب المجموع یاحکمت عروضیه کتاب الحاصل والمحصول، کتاب البرو الاثم کتاب الشفاء کتاب القانون، کتاب الانصاف، کتاب النجات، اوسط جرجانی المبدء والمعاد، لسان الغرب، رساله قضا وقدر آلات رصدیه مخارج حروف رساله حی بن یقظان، کتاب القولنج ادویه قلبیه، کتاب هدایت الارشادات والتنبیهات، کتاب مباحثات رساله در زاویه حکمت شرقیه، رسالت الطیر، التدارك الا نواع الخطاء فی التدبیر، رساله کیمیا، رساله عشق جواب ١٤ سوال ابو احسن عامری، رساله در ردمقاله ابوالفرج بن طیب، مناظرات شیخ الرئیس رسایل شیخ به شیخ ابوسعید ابوالخیر عارف، حیوا ن شناسی، کتاب درسیاست کشورولشکر واقتصاد.

دشیخ الرئیس ابن سینا مشهور تالیفات تردوه سوه دوخلو ینبتو ته کو اوړی (٢).

ابن سینا دفارسی او عربی شعر استادوو دعربی اشعارو ښه یی عینیه قصیده دروح په باره کی زیاته مشهوره ده چی مطلع یی داسی ده.

---

١ـ تاریخ ادبیات ایران ازفردوسی تاسعدی مولف ادوارد براون ترجمه حواشی بقلم فتح الله مجتبایی چاپ تهران ١٣٤٢ .

هبطت الیك من المحل الا رفع ورقاء ذات تقرر وتمتع
دفارسی دغه شعرونه‌ده ته‌منسوب دی.

غذای روح بود باده رحیق الحق
که رنگ‌وبوش کند رنگ وبوی گل رادق
برنگ زنگ‌زداید زجان اندوهگین
همای گردداگر جرعه ای بنوشد بق
بطعم تلخ چوپندید رولیك مفید
به پیش مبطل باطل بنزد دانا حق
من ازجهالت جمال شدبه شرع حرام
چومه که‌ازسبب منکران دین شد (۱)

# ابو منصور ثعالبی

دی شاعر، مورخ‌اوفقی وو چی‌په ۳۵۰ کی زیږیدلی وو اود ابوالفتح بستی اوحسنك میکال‌سره‌یی نژدی علایق درلودل اود مشهور وتالیفاتو څخه یی غرر اخبار ملوك الفرس‌دی چی‌په عربی یی دامیر نصربن نا صر الدین‌سبګتګین په‌نامه تالیف کړی دی دغه کتاب یی‌د ۳۹۰ او ٤١٢ کلونو په‌منځ کی‌لیکلی دی‌بل اثر یی یتیمة الدهر دی چی په‌څلورو ټوکو نو کی یی‌دعربو اوخرا سان دشاعرانو په سوانحو کی لیکلی‌دی بل‌اثریی کتاب‌فقت الغات دی چی‌دعربو دلغاتو اومحاوراتو په‌خصوص‌کی یی دعبیدالله بن‌احمد دکال په‌نامه تالیف کړیدی همداشانی یی لطایف المعارف‌داسمعیل بن‌عباد ،اومبهج وثمثل المحاضره‌دشمس المعانی قابوس بن‌وشمګیر

خوارزم شاه په‌نامه لیکلی‌دی (۱)

## آل میکال

دغی علمی کورنی دسلـــطان‌محمود غزنوی په‌دربار کی زیات
عزت اواحترام درلود چی مشهورغړی یې ابونصر احمدبن علـــی
میکال، ابوالفضل بن ابو نصـــرمیکالی امیر ابوابراهیم بن ابـــو
نصر میکال أونوردی .(۲)

## ابو نصر عتبی

نوم یی‌محمد دعبدالجبار زوی‌دسبکتگین درسالت په‌دیوان کې
دابوالفتح بستی سره یی‌کارکاووددسلطان محمود غزنوی دژوندانـــه
اووقایعو په‌خصوص کی‌یی عتبی‌تاریخ لیکلی اوتر ۴۰۹ه پـــوری
وقایع پکښی دی دغه‌کتاب‌لومړی‌ځله په‌عربی لیکل سوی‌اوپه ۶۰۳
جرفاد قامی په‌پارسی اړولی اوپه‌تهران کی‌چاپ سوی‌دی عربـــی
نسخی یی په‌هند اومصر کی‌چاپ‌سوی دی ابونصر عتبی دژوندانه
په وروستیو وختوکی دباد غیس‌په رستاق کی‌دپوستی په‌کار لگیا
وو اود حسن میـــوندی سره‌یـــی‌دنږدی علایق درلودل .(۳)

## ابوسعید عبدالحی بن ضحاك بن محمود گردیزی

دی دهیواد دمشهورو مورخینوڅخه دی چی‌خپل اثر زین‌الاخباریی
دطاهر بن‌حسین دزمانی څخه یعنی‌د۲۰۵ کال واقعاتو څخه شـــروع
أود مـــودود بن مسعود غـــزنوی‌تـــر وخته پـــوری یـــی پـــای

غزنی

تەرسولی دغەکتاب دعبدالرشیدبن سلطان محمود ٤٤١ـ ٤٤٤ پەسپارښت تالیف سوی‌دی .

## ابو الخیر خمار

حسین بن‌سوار بن‌بابا بن‌بهرام‌ابوالخیر پەابن خمار معروف د ٣٣١ کال‌پە ربیع الاول کی پە بغداد کی زوکړی دخپل‌عصر دلویو علماوو اوفضلاوو څخەوو او شیخ‌الرئیس ابن‌سینایی دلیدلو ډیر خواهش درلود ده دفلسفی علومودپایتە رسولو وروستە دخوارزم شاه دربارتە راغی اوددغه دربارڅخە سلطان محمود غزنوی غزنی تە راوغوښت اوددی سره چی‌نصرانی وومحمودیی پە عقیدە هیڅ کارونە درلود دده دعلم اومعرفت یی ډیرقدر کاوو او پە غزنی کی‌یی دطبیب پەحیث پەشفاخانە کی‌هم کار کاوو ابن‌خمار تر دېرش جلدو زیات تالیفات

## د غزنو یانود دربار مشهور شاعران

### ملك الشعرا عنصری

نوم یی حسن کنیت یی ابـــــوالقاسم دپلار نوم یی احمدز یږیدو
ځای یی بلخ ؤ دی قصیده ویو نــکی شاعر دی او اشعار یی دوطن دمناظرو
او محمود غزنوی په ستاینه کــېدی اود اشعار و دیوان یی دیرشو
زروته رسیږی دمحمود در بـــارته درسیدو مجرد خپـل احـــوال
داسی بیانوی :ــ

مبارك است براحــرار نــام وخدمت تو
مرا نخست پدید آمدست این بــرهان
مرا جوان خردو پیر بخـت بگزیدی
بنام توخردم پیر گشت وبخت جوان

# اسیر فرخی

نوم یی علی کنیت یی ابوالحسن تخلص یی فرخی دپلار نوم یـــې جولوغ دزیږیدو ځای یی سیستان دی دی دیوه بزگر زوی دی اوپــه ځوانی کی دامیر چغانی پــه معرفی دغزنوی دربار دمنسوبینو څخــه سو دولت شاه سمرقندی په خپلــه تذکره کی دده پەخصوص کـــې داسی لیکلی :ـ

(فرخی عجم را همچنا ن اســت که متنبی عرب را درین هردوفاضل سخن را سهل وممتنع میگویند ..)

پرفرخی سلطان محمود اووطن مخصوص غزنی ډیر گران وو لکــه چی وایی :ـ

عزم کی دارد که غزنین رابیاراید بروی
رای کی دارد که برصدر پدر گردد مکیـــن
دار ملك خویش را ضایع چـــرا باید گذاشت
مر سپاهان راچرا کرده است برغزنی گزین
هرکه غزنی دیده باشد درصفاهان چون بود
هرکه تازه میده بیند کی خورد نان جوین
خانه محمود رامسعود زیبد کدخدای
کد خدای خانه شیر عرین باشد عـــرین

فرخی دمحمود په مرگ کی په غزنی کی نه وو هغه وخت چی راغی دغزنی دحال اومحمود دمړینی څخه ډیرمتاثر سو اوداسی مرثیه یـــې وویله :ـ

شهر غزنی نه همانست کـــه من دیدم پار
چی فتاداست که امسال دگر گون شـــده کار

**غزنی**

رسته ها بینم پری مردم ودرهای دکان
همه بربسته‌و بر درزده هر یك مسمار

کاخها بینم پرداخته ازمحتشمان
همه یکسرزریض برده بشار ستا ن بار

مهتر ان بینم برروی زنان همچو زنان
چشمها کرده‌زخونا به برنگ گلنار

حاجبان بینم خسته دل وپوشیده سیاه
کله افگنده‌یکی ازسرو دیگر دستار

بانوان بینم بیرون شده ازخانه بکوی
بر در میدان گریان وخرو شان هموار

خواجگان بینم بر داشته ازپیش دوات
دستها برسرو سرمازده اندر دیوار

عاملان بینم بازآمده غمگین‌زعمل
کار نا کرده‌ونارفته به دیوان شمار

مطربان بینم گریان‌وده انگشت گزان
رودها برسرو برروی زده شفته وار

لشکری بینم سر گشته سراسیمه شده
چشم ها پرنم‌واز حسرت وغم گشته نزار

این همان لشکریان است که‌من‌دیدم دی
واین همان‌شهرودیار است که‌من دیدم پار

مگر امسال ملك باز نیا یدزغزا
دشمنی روی‌نهاداست براین شهر ودیار

مگر امسال زهرخانه عزیزی گم شد

تونگویی چه فتاد است بگو گر بتوان
من نه بیگانه‌ام این حال زمن باز مدار
رفت ومارا همه بیچاره ودرمانده بماند
من ندانم که‌چی‌درمان کنم این‌راو چه‌چار
آه ودردا ودریغا که‌چه محمودملك
همچو هرخاری درزیر زمین ریزد خوار
آه ودر داکه بیکباره تهی بینم‌از او
کاخ محمودی‌وآن خانه پرنقش ونگار
آه‌و دردا که‌کنون قیصر رومی برهد
از تکاپوی برآوردن برج ودیوار
آه ودردا که‌کنون قر مطیان‌شاد شوند
ایمنی یابند‌از سنگ پراگنده ودار
وای ودردا که‌کنون برهمنان‌همه هند
جای سازند‌بتان را گراز نوبه بهار
میرماخفته بخاك اندروما از برخاك
این چه روزاست‌بدین زاری یارب زنهار
میری خورده مگردی‌و بخفته‌است امروز
دیربلاخاست مگر رنج رسیدش‌زخار
• دهل‌و کوس همانا‌کی همی‌زان‌نزنند
تابخسپدخوش‌وکمتر بودش بر دل بار
ای‌امیر همه میران‌و شهنشاه‌جهان

غزنی

خیز شاها که بقنوچ سپه گـــردشده است
روی آن سونه برتارك شان آتـش بـــار
خیز شاها کی رسولان شهـان آمده اند
هدیه هادارند امرده فراوان و نثـار
خیز شاها کی امیران بسلام آمده اند
بار شـان ده که رسیده استهمانا گه بار
خیز شاها کی به فیروزی گـل بازشده است
برگل نـوقدحی چند می لعـل گسار
خیز شاها کی به چوگانی گـردآمده اند
آنکه باایشا نچوگان زده ای چندین بـــار
خیز شاها کی همه دوخته وساخته گشت
خلعت لشکروکـردند به یکجا انـــبـــار
خفتن بسیار ای خســرو خـوی تو نبود
هیچ کس خفته نه امید است ترازین کـردار
خوی تو تاختن وشغل سفربودمدام
به نیا ســـودی هرچند کـه بودی بیمار
سفر داری امسال دراز انـــدرپیش
که مر آنرانه گرانست پدیدو نـــه کنار
رفتن توبخزان بودی هـــرسال شها
چی شتا بآمد که امسال برفتی بـه بهار
مرغ و ماهی چوزنان برتو همی نوحه کنند

بحصار ازفزع وبیم تو رفتنـدشهان
تو شهـاز فزع وبیم که رفتی بحصار
توبباغی چوبیا بانی دل سنگ‌شدی
چـون‌گرفتستی درجایگه تنگ قرار
اندران گیتی ایزددل تـو شادکناد
به بهشت‌وبه‌ثواب وبه قراوان کردار (۱)

لبیبی دفرخی دمړینی په ویـرکی داسی وایی ؛ـ
گرفرخی بمیرد چرا عنـصری‌نمرد
پیری بماند دیرو جوانی بـرفت زود
فرزانه برفت‌و زرفتنش صـدزبان
دیوانه یـی‌بماندو زماندنش هیچ سـود

فرخی دسومنات دفتح په یوه‌لویه قصیده کی‌دسلطان محـمود داسی ستاینه کوی چی ځو بیـته‌یی دادی؛ـ
فسانه گشت کهن‌شد حـدیث‌اسکندر
سخن‌نو آرکه نو ر احلا وتیست دگــر
یمین دولت محمود شهر یـارجهان
خدا یگان‌نکو منظـر نکــو محـتر
جهان‌و مال جهان ســربسرچمنده به‌تست
به‌شهر یاری‌وپیروزی از چمنده چـر (۲)

# حکیم ابو القاسم فردوسی

کنیت‌یی ابوالقاسم نوم‌یی‌حسن بن‌علی طوسـی د۹۲۰ میـلادی

## غزنی

دویلو اوسلطان محمو د ســره‌دپیژند گلولو په هکله ډول ډول روایتونه ستـه .

چهار مقاله نظامی عروضی کی‌دده په‌هکله داسی راغلی دی؛—

فردوسی مردی بود دهـقا ن‌ازاهالی دهکده یی بنا باز ازناحیه طابران‌طوس وطوس شهرمشهو رخراسان بود که‌مشهد کنونی بر جای‌آن است قرار دارد فر دوسی‌به استعلال می‌زیست واز عوایـد املاك خود معیشت میکرد وفقـطیکدختر داشت فردوسی تنها برای فراهم ساختن جهازی شایسته ازبهر دختر خویش به‌نظم شاهنامه پرداخت دمی کوشید کـــه‌مردی‌صاحب مال بیابد تااین کـتا ب پس ازسی وپنج سال به پایـــان‌رسید علی دیلم آنرا استنســـاخ کرد ابودالف خوانــدن آنــرا به‌عهده گرفت فردوسی در ابـیات زیرین ازین دوکس ونیز ازحسن‌بن‌قتیبه حاکم‌طوس بود وبه وی ومساعدت بسیار کرده‌بـود نـام‌میبرد ؛—

| | |
|---|---|
| ازین نامه ازنامــداران شـــهر | علی دیلم وبودلف راسته بهـر |
| نیامد جز احسنتشان بهره ده | بگفت اندر احسنتشان زهر دم |
| حسین قتیبه‌است ازآزاده گان | که‌ازمن نخواهد سخن رایـگان |
| نیم آگه ازاصل‌و فروغ خــراج | همی غلطم اندر میـــان دواج |

این حسین قتیبه که‌عامل طوس‌بود فردوسی را ازخراج معـا ف داشت لاجرم نام‌او تاقیامت بماندوپاد شاهان همی خوانند .

هغه وخت چی‌علی د یلمـــــی‌دشاهنامی داوو ټوکو دنسـخـی اخیستلو نه فارغ سو فردو ســی‌هغه را واخسته اوغزنی ته راغی ... حسن المیمندی ته تقدیم کـــره

هم هغه‌دیر ستایه لکه چی‌وایی؛ـ

بجهان جبرییل وبه‌تن ژنده پیل
به‌کف ابر بهمن بـدل رود نیل

جهان آفرین تاجهان آفـر یــد
چنو مر زنـانی نـیامد پـد ید

چوخورشید درگاه بنمـود تــاج
زمین شد بکردار تابنده عــا ج

چه‌گویی که‌خورشید تابان که بود
کزو درجهان روشنائی فـزود

ابوالقاسم آن شاه فیروز بخـت
نهاد ازبر تاج خورشید تخـت

به‌ایرانو توران ورابنــده انـد
برای وبفرمان اوزنـده انـــد

چه‌کودك لب‌ازشیر مادر بشست
بگهواره محمود گوید نخســت

کسی‌کس پدر ناصرالدین بـود
پی‌تخت‌تخت‌وتاج پـر دین بود

گواهی دهد درجهان خـاك وآب
همان بر فلك چشـمه آفـتا ب

که‌چون اونبوداست‌شاهی بجنگ
نه‌در بخشش وکوشش‌ونام ننگ

همدا شانی وایی ؛ـ

خجسته درگه‌محمود زابلی دریاست
چگونه دریاء کان راکناره پیدا نیست

شدم به دریا غوطه زدم ندیدم‌در
گناه بخت‌منست این‌گناه دریا نیسـت

خودا چی فردوسی دمـــحمودغزنوی په‌هکله هجوه ویلی دنـوو تحقیقاتو له‌مخی صحیح نه‌ده اودشاهنامی دبیلو ځایونو څخه پـه بیلو موضوعاتوکی دغه‌دول آبیات‌را غونډ سوی اوپه هـجو کـی محمود غزنوی ته نسبت شـویدی‌اود صله نه‌ورکولو اویا ځندیدلو په‌جرم پرسلطان محمود داســی‌تهمت نه‌تړی ؛ـ

غزنی

( مادر سلطان محمود دختر رئیس زاول بود واورا بدین‌سبب زاولی خوانند .) (۱)
دواړه حراو عزتمند وو فردوسی زیات آثار لری چی‌مشهور یی دادی :
شاهنامه ،یوسف زلیخا اونور.

# غضایری رازی

ابو یزید محمد غضایری رازی‌لومړی ځل ددیلیمیانو مداح وواو خرنگه چی دری ژبه دهغو په‌قلمرو کی رواج نه‌وه نویی مخ غزنی ته راونیوی اوپه خپلوقصیدو یی ډیری صلی وگتهی لکه چه‌وایی :ـ
دوبدره زر بگرفتم بفتح‌نارایین
بفتح رومیه‌صد بدره گیرم وخر طال
غضایری په ٤٢٤ کی‌مړدی.
دسلطان محمود په دربار کې‌دغضایری او عنصری مخالفت‌پیدا سو چی ددواړو مناظره دادبی‌مهمو نقدونو څخه شمیر الکیږی.

# عسجدی

ابوالنصر عبدالعزیز بن‌منصورعسجدی مروزی ځنی یی‌دمرورود اوځنی یی دهرات بولی دی‌دسلطان محمود ددربار دشاعرانو څخه‌دی دعسجدی دشعرونو زیاته‌برخه ضایع سویده اود سومنا ت

تاشاه خسروان سفر سومنات کرد
کردار خویش‌را علم معجزات کرد
آثار روشن ملکان گذشته‌را
نزدیک بخردان همه‌را مشکلات کرد
محمود شهر یار کریم آنکه‌ملك را
بنیاد برمحامدو بر مکرمات کرد
بزدود زاهل کفر جهان را براهل دین
شکر دو عای‌خویشتن از واجبات کرد (۱)

## استاد ابوالحسن بهرامی علی سرخسی :

دی دغزنی ددربار دشا عرانواوپه عروض ، قافیه‌کی یی‌ډیری رسالی لیکلی اوپر هغه باندی‌یی‌غایت العروض کنز القافیه او رساله خجسته نومونه ایښی دغه‌دوه بیته دده دی؛ـ

ماهردو بتاگل دور نکنیم بنگر بچه خواهمت صفت کرد
یك‌نیمه آن توی بسر خسی وین نیم دگرمنم چنین زرد

## ابونصر احمدبن منصو راسدی طوسی

دی دخپل عصر دلویوشاعرا نوځخه دی وایی چی‌سلطان محمود غزنوی لو مړی ځل داده ځخه‌دشهنامی دنظم جوړولو غو ښتنه وکړه خو دزړتیا اوعلالت له مخی‌یی معذرت وغوښت دځو قطعو پرته نور اشعاریی نسته .

اسدی دمحمود دمړینی در ی‌کاله وروسته په ٤٢٣ کی‌مړدی.

تر ۳۹۵ پوری لاژوندی وو دده پەدغهٔ قطعی سره :—

بنفشه داد مرا لعبت بنفشـــهقبای
بنفشه بـــوی‌شداز بو ی آن بنفشه ســـرای

بنفشه است ونبیند بنفشه‌بوی‌خوریم
به یـــادهمت محمود شاه بار خـــدای

سلطان محمود غزنوی امر وکړچی دمرود خزانی څخـــه‌دوه زره دیناره صله ورکړی اوکه خپـــله‌شاعر مړوی ورثه ووته دی‌ورکړی

# مسعود سعد سلیمان

مسعود سعد سلیمان دسلطان‌محمود ددربار دســـیا ســـت پوهانو اومشهورو شعرااو څخه‌ووپه ۵۱۵هـ کی مړاود عربی،فارسی اوهندی دیوانو نه ځنی پاته دی‌دده په شعرونو کـــی دمســـعود دستاینو پرته بل څه نسته‌مسعوددد۴۷۲ ــ ۴۹۰ پوری دغزنی دنایی په‌کلا کی بندی‌وو لکه چی‌وایی ؛

اگر حکایت مسعود ســـعدوقلعه نای
شنیده ای‌که‌دران مانده مـــدتی مطـــرود

یقین بدان که‌زبد حـــالـــی وشکسته دلی
زمانه قلعه‌نـــایست ومـــا در و مســـعود

مسعود سعد په‌لاهور کـــی‌زیږیدلی دی لکه چی‌وایی ؛

بهیچ نوع گناهـــی دگـــر نمیدانم

غزنی

آرد هوای نای مرا ناله های زار
جز ناله های زار چه آرد هوای نای
گردون چه‌خواهد ازمن بیچاره‌ضعیف
گیتی چه‌جوید ازمن درمانده گدای
ای محنت ارنه کوه شدی ساعتی برو
وی دولت ارنه‌باد شدی لحظه یی به‌پای (۱)

# ابو النجم احمد بن قوص بن احمد المنوچهري

نوم یی احمد کنیت یی ابوالنجم دپلار نوم یی قوصی اوتخلص یی منوچهری دی ده‌خپل تخلص منوچهری دطبرستان دشاهزاده دنامه ملك العالی منو چهری بن قابوس بن وشمگیر څخه اخستی دی فلك المعالی په ۱۰۱۲م– ۴۰۳ ه کی دپلار دشهادت وروسته پرځای کښیناستلی دی اوپه ۱۰۲۸ –۴۱۹ کی مړدی ځنی یی مولد دامغان ،ځنی یی بلخ او ځنی یې غزنی گڼی دسلطان مسعود په ستاینه یی ډیری قصیدی ویلی دی دشعر دیوان یی ډیرنه‌موند ل کیږی ادو بیبرستن کازیمر سکی هغه دبشپړی ترجمی اومقدمی سره په ۱۸۸٦ کی په‌پاریس کی طبع کړاوشپږ کاله دمخه ترهغه په تهران سنگی چاپ سو.

دده یوه قصیده دشمع په‌ستاینه‌اود عنصری په‌مدح پایته رسیږی:

ای نهاده برمیان فرق جان خویشتن
جسم ما زنده به‌جان وجان تو زنده به‌تن
گرنه ای کوکب چرا پیدانکردی جز بشب
ورنه ای عاشق چرا گرمی همی برخویشتن
کوکبی؛ آری ولکن آسمان توست موم

غزنی

گر بمیری آتش اندر تورسد زنده شوی
چون شوی بیمار خوشتر گردی ازگردن زدن

راز دار من تویی ای شمع یار من تویی
غمگسار من تویی من آن توتو آن من

توهمی تابی ومن برتو همی خوانم به مهر
هرشبی تاروز دیوان ابوالقاسم حسن

اوستا داو ستادان ز مانه عنصری
عنصرش بی عیب ودل بی غش ودینش بی فتن(۱)

منو چهر ی دسلطان په مدح کی وایی ؛

شاهی که بدو هیچ ملك چیر نباشد
شاهی کی شکارش بجز ازشیر نباشد

یك نیمه گیتی ستد وسیر نباشد
تا نیمه دیگر نستد دیر نباشد

این یافتن ملك بشمشیر نباشد
باید کی خداوند جهاندار بود یار

ای شاه تویی شاه جهانی گذرانرا
ایزد بتوداده است زمین رو زمان را

بردار تواز روی زمین قیصروخان را
یك شاه بسنده بوداین مایه جهانرا

باملك چه کار است فلان راوفلان را
خرس از درگلشن کش وخوك از در گلزار

د... الدوله په ستاینه کی وایی ؛

غزنی

قیصر شرا بداتو جیپال پاسبان
یبغوررکاب دارتو، فعفور پرده‌دار
اندر حجاز بزم‌کنی در عراق‌رزم
اندرعرب‌مظالم واندر عجم شکار

## زینتی علوی محمودی

دسلطان محمود او سلطان‌مسعود ددربار شاعرانو اوستا یندو یانو شخه‌دی‌اوډیر بخششونه‌ورکړه سوی دی .

بیهقی وایی :ـ سلطان‌مسعودعلوی چی شاعروو یوه شپه‌یو پیل وار درم وبخښل زر، زردرم اووایی چنانکی عیارش درده‌درم نقره نه‌ونیم آمدی وفرمود تا آن‌صلت گرانرا برپسیل نهادند وبه خانه علوی بردند ودرواقعات٤٢١ درروز عید رمضان ازاین شاعر نام‌میبرد ومیگوید امیر به‌شاعرانی که‌بیگانه‌تر بودند بیست هزار درم فرمود وعلوی زینتی راپنجاه هزار درم برپیل بخانه او بردند .

عرفی دده دوی قطعی شعرونه‌را نقلوی چی دواړه دمحمود په ستاینه کی‌دی .

ای خداوند روزگار پناه — مطربان رانخواه وباده بخواه
تابدان لعل می‌فرو شوییم — کامها رازگرداد خشکی راه
غم‌گریزد زپیش‌ما، چونانکه — خان‌و قیصر زپیش شاهنشاه
خسرو خسروان ملك محمود — ملت‌وملك راهمیشه پناه (١)

## لبیبی ادیبی

قصیده ویلی‌وه چی‌څو بیته یې‌دادی ؛

چو برکندم دل‌از دیدار دلبـر — نهادم مهر خرسندی به‌دلبر
مدح شاه برخواندم به جیحون — برامد بانـگ اوالله اکـبـر
تواضع کرد بسیار ومرا گفت — زمن شکوه وبی آزار بـگذر
که‌من شاگرد کفرا دانـم — که‌تو مدحش همی برخوانی‌ازبر
به‌فرشاه ازو بیـرون گـذشتم — یکی‌موی ازتن من‌ناشده تـر
بدین درگاه عالی چون رسیدم — رهاکردم سوی‌جانان کبو تـر
به‌صدر اندر نشسته پادشاهی — ظفریاری، بکنیت بوالمظفر(۱)

## ابو الفر رونی ج

دی هم‌دسلطان ابراهیم اوده‌دزوی مسعود مداح‌وو اودسلطان ابراهیم په‌مدح کی‌دغه قطعه ده.

شاهیکه ملوك راز عدلش بیم‌است
هفت انـدامش سلاح هفت اقلیم اسـت

از هیبت ملك او فلك دونیـم‌است
سلطـان‌مظفر ملك ابـراهیم اسـت

## سید محمد بن ناصر علوی غزنوی

نوم یی محمد دپلارنوم یـــی‌ناصر اولقب یی جلال‌الدیـن دی دسید حسن کوچنـــی ورور د ی‌دبهرام شاه معاصر دی اوسنا یی رحمت‌الله علیه ده ده به‌ستاینه کی‌قصیده لری دی دآتش به‌ردیـف

چوساخت درد ل تنگم چنین مکان آتش
نه یافت جای مگر درهمه جهان آتش
بخوشدلی بکشم گرم و سردتو که مرا
تو دربهار نسیمی و در خزان آتش
عجب که لاله دعای حسود شاه نگفت
دعا که کرد که باداش در دهان آتش
به یمین دولت بهرام شاه کاندر دم
زبان خنجر اوهست ترجمان آتش

## سیدحسن غزنوی

دبهرام شاه دعصر دلویو اومشهور و شاعرانو څخه دی چې پنځه اودل انگیزه دیوان لري وروسته دبهرام شاه څخه خوابدی سو اومدینی منوری ته ولاړ اویوه قصیده یی درسول الله صلعم دربار ته وویله چې مطلع یې داده :-

لاف فرزندی نیارم زود لیکن ای حبیب
مدحتی گفتم زحضرت خلعتی بیرون فرست

دده زیارت ختیځی لوری ته غزنی ته نژدی دی.

## ابوالفضل سرور بن محمد تالقانی

دی هم دسلطان محمود ددربارد ثناگویانو اومداحانو څخه وو

## منشوري ثمرقندی

غزنی

صدر اجل ملك‌الكتاب عوفی په‌لباب الالباب کی دده ذکر کړی‌دی په‌عربی اودری‌دیوان‌لری.

## ابوسراقه عبدالرحمن د بلخی احمدزوی

دسلطان محمود ددربار دشاعرانو اوستا یندو یانو څخه ؤ دبلخ څخه غزنی ته راغی اولومړی ځلی‌یی نجاری کوله دسلطان‌محمود غزنوی په‌مدح کی‌وایی :—

چو محمود خسرو نبودونباشد
سفرپیشه شاه سفر کرده بی‌مر
گهی سوی جیحون رود چون‌فریدون
گهی‌سوی سمت رود چون سکندر
گهی تخت جیپال بر دربدارد
گهی‌چتر خاقان بیا ویزد از شر
گهی رایتش رابه بر وی‌بینی
امین‌ملك خسرو هفت کشور

**ابو محمد عبدالله بن محمد په‌بلخی زور ده معروف :**

دادبی ذوق أوشعری سلیقی‌خاوند وو په‌بلخ اوغزنی کی یې حیثیت درلود .

**امام ابو عبدالله عبدالرحمن‌دمحمدعطار زوی**

دسلطان محمود غزنوی دثناگویانو أوپرورد گانو څخه‌وو .

**ابو المظفر بن ابراهیم بن علی‌پنجهری (پنجشیری)**

**غزنی**

**ابو عبدالله روزبه بن عبداللـهنکتی لاهوری**
دسلطان مسعود ددربار شاعرانوڅخهوو.

**مسعود رازی**

بیهقی ددغه شاعر ذکـرکـړیدی اوسلطان مسعود انعامونــــه ورکړیدی .

## مظفر پنجدهی

دمرورو دپنجــده اود غــز نیددربار دشاعرانو څخهوو عــوفی دده دغه اشعار راوړی :ــ

بههفت کشور تامدح پنجدهگویم
چــوبادگشتی اندر زمی زمی بیحــال
دوپای دارم چاردگر ببــاید ازآنگ
بهفتکشور نتوان رسید بیششپای

## کوکبك مروزی

دغزنوی دوری دشاعرانو څخهدی عوفی دغه شعرونه ددهبولی:

قدحو باده هردو از صــفوت همچو ماه درهفته دارد دائــر
یاقدح بیمی است یامی نــاب بی قدح درهوا شگفت مــگر

## حکیم سنایی غزنوی

نومیی مجدود دادم زویدکریمدکورنی څخهوو مرحوم بــدیــع
الزمان فروزانفر

پسری داری همــنام رهــی　　ازتو می‌خدمت اوجویم مــن
زانکه نیکو کند ازهمنا مــی　　خدمت خواجه حسن بنده حسن

نوعقیده لری‌چی حکیم سنایی‌اصلاحسن نومید او ورو ستـــه مجدود ونومید. دحکیم سنایـــی‌صاحب کنیت ابوالمجدوو لـــکه چی وایی :

هرکه اوگشته طالب مجد است　　شقی اوزقول بوالمجد اســـت
زانکه جدرا بتن‌شدم بنیـــت　　کرد مجدود ماضیم کـنیـت
شعرا را بـــه‌لفظ مقصـــو دم　　زین قبیل نام گشت مجدودم

عوام یی حکیم سنایی صـاحب‌بولی اوخپله حکیم‌هم په‌دی هکله وایی :ـ

خاك غزنین چومن نزاد حکیـم　　آتشی باد خوارو آب نـد یـم
ازهمه شاعران به‌اصل وبه فرع　　من‌حکیم به قول صاحب شر ع

مولینا جلال الدین بلخی پـــه‌مثنوی کی‌دی فخر العارفین بولی او فـــوا یـــد ا لفواد یـــی‌خواجه حکیم سنایی خواجه سنایی بولی حکیم‌سنایی صاحب د ٤٧٠ـ١٠٧٦ ـ ٤٥٦هـ ش‌په شاوخواکی زیږیدلی دی لکه چی‌خپله وایی ؛

گرچه مولدمرا ازغزنین است　　نقش‌شعرم چو نقش ماچین‌است
خاك‌غزنین چومن نـزاد حکـیم　　آتشی باد خوارو آب نـدیـم

ددی سره چی دحکیم ســنایی‌صاحب کورنی په‌غربت اوبیو سی اوسیده اوپه ځوانی کی یی ثقـةالملك طاهربن علی مشکان تـــه

## غزنی

اوادب دهسکیمرتبی ښکارندوی‌دی، حکـیم سنـایی صاحب پـه ځوانی کی‌دتنگدستی اوبیوسی له‌کبله دزیاتو امـراوو اوحکــماو ستاینه کړیده چی ددغی جملـــی‌څخه دغزنی‌دقاضی ابوالوفابرکات بن‌مبارك فتحی یاقتبی اتیایـیزه‌قصیده زنگی محسن دخطاب‌قطعه ددراغی اوازرد تقاضا ابراهیم بن‌علی بن‌أبراهیم دخطاب قطعه چی قصبی اودراغه یی غوښـــتی اوداسی نور دیادونی وړدی‌خو ددی سره یی چالاس نیوی ونه‌کـړ اوناچار دغزنی څخه بلخ‌ته دخواجــه حسن اسعدی‌دمرستی په‌هیله‌ولاړ په لومړی سرکی هلته ډیرخوښ اوآرام وو خو وروستـــه دده اوخواجه په‌منځ کی مناسبات خراب سول اود کعبی شریفی دزیـارت‌هوا خواه سو اود حج وروسته‌یی روحی انقلاب کرار کرار قـــوت‌موند اود بلخ څخه سرخس تـــه ولاړ اود سرخـــس دستـــرعالم اوروحانی شخصیت ابوالمفاخر محمد بن منصور له‌خوا ښه‌ونمانځل سواود خانقاه په‌چلولو کی ورسـره شریك سولکه چی‌وایی :ـ

دم‌روح الله‌است یادم صور خانـگاه محـــمد منـصو ر
که‌زدرس‌و کتاب ودارو هست ازسه سودین وجان‌وتن‌راسود
زین بنایمن ازدوچیـز ســه‌چیز

تن‌و جان‌و دل‌ازقصور (خل: قبور )وفتور
درتن ارعلتی است اینجا خواه حب مرطوب وشربت محـرور
دردل ارشبهتیست اینجا خوان لوح محفوظ ودمـتر مسطـور

راغی که څه‌هم ده (مثنوی حدیقه) دغزنی دسلطان بهرام شاه په‌نامه راټوله کړه خوداځل یی دستاینی‌اوپیژندنی رنګ اوبڼتی‌وو دلویی اومعرفت هسکی نو ښبانی یـــې درلودی لکه مولینا جلال الدین چی دده په‌هکله وایی :ــ

ترك جوشی کرده‌ام من‌نیم خام    ازحکیم غزنوی بشنو تـــمام
آن‌امام الغیب وفخر العار فین    درالهی نامه گفته شرح ایـــن

حکیم سنایی صاحب دیکشنبه په‌شپه دشعبان په ۱۱ (۵۲۹) دمی په ۲٦ (۱۱۳۵) دجوزا په ۱۱ــ (۵۱٤) هـ ش په‌غزنی کی وفات سو. (۱)

دحکیم سنایی صاحب مشهورآثار دادی:ــ

حدیقة الحقیقه‌وشریعة الطریقه، مثنوی سیر العباد الی المعـــا د طریق التحقیق مثنوی تحریمـــةالقلم ، وقصاید، غزلیاتو، مقطعاتو رباعیاتو دیوان یی مثنوی عقلنامه‌مثنوی عشق نامه، مکاتیب سنایی کنزالر موز، منشور اونور.

تذکره نتایج الافکار دمحمـــدقدرت الله گویا موی تالیف پـــه ۳۱۳ مخ د۱۳۳٦ کال دبمبیـــی‌چاپ کی دحکیم سنایی صاحـــب دترك دنیا اوتصوف ته‌دمخ کولو په‌هکله داسی لیکلی :ــ

(.... هرگاه بهرام شاه بـــعزم‌تسخیر بعضی ازممالك کـــفار از غزنین برامده سنایی هم‌بنا بـــرگذرانیدن قصیده که‌در مدح گفته بود کمر بمرافقت بست چـــون‌قریب گلخنی رسیـــد در آنجـــا مجذوبی بود مشهور به‌لای خوارکه مدام لای شراب خوردی ازوی شنید که‌باساقی خوز گفت ساغری پـــر کن من‌تا بکوری بهرام شـــاه

خورم وی گفت بهرام شاه مـــردغازیست درجواب فر مود مـــرد حریص است چی بانضباط ملک‌مقبوضه خود نه‌کوشیده به گرفتن مملکت دیگر میرود پس‌ساغـــر کشید بعدازان گفت‌بدین قـدحی تابکور دلی حکیم سنایی کشـــم‌ســاقـــی گـفت وی مرد فاضـــل ونیک نهاد است درجواب گـفـت‌اگروی نیک نهاد بودی بکـــاری مشغول شدی ودرپـــی ایـــن‌وآن‌نگشتی نمیداند که‌اورا برای‌کدام کار آفریده اند حکیم بمجرداصنای‌این کلام دلکش ازجارفـــت وراه سلوک پیش گرفت ...)

دقبر پرلوحی بـــاندی داســی‌لیکلی سوی‌دی :ــ

هذالقبر الفقیر الی رحمـــة اللّٰه‌مجدود الدین السنایی غفراللّٰه چه وروسته یی آیت الکرسی ده اوپربله دبره چی‌ددغی لوحی لانـــدی ده داسی لیکلی سوی :ــ

( کان وفات الشیـــخ العـــالم‌الفاضل شمس العارفین قـــطـــب المحققین طوطی شکـــر ســـتان‌فصاحت بلبل بوستان بلاغت‌مظهر اسرار معانی بکریه مطلع الانـــوارالفاظ فکریه یعنی مجدود الـــدین سنای خمس وعشرون وخمسماته‌سنه ۵۲۵.

دمحلی روایاتو له‌مخی دغز نی‌دشلگر دروازی دباندی دنیم کیلو متر‌په فاصله یوقبرستنه چه‌هغـــه‌دحکیم سنایی صاحب دپلار آدم په نامه مشهوردی .

## سراج الدین عثمانی

# شیخ علی هجویری (داتا گنج بخش)

نوم یی ابو الحسن علی ابـــن‌عثمان غزنوی دی ځرنگه چـی‌دی دغزنی دجلاب اوهجویر په‌کلی کی‌اوسیدلی نو (الجلابی والهجویری) هم‌ورته ویل کیږی دهندپه لو یه‌قاره کی دداتا گنج بخش‌په نامه یادیږی .

شیخ ابوالحسن دخپل‌عصر لوی‌عالم اوعارف‌وودابوسعید ابوالخیر (په ۴۴۰ق‌ه مړ)معاصرؤ چی دوی‌دواړه دشیخ ابوالفضل محمدبـــن الحسن السرخسی مریدان‌وو اودشیخ ابوالقاسم قشیری اوشیـــخ ابوالقاسم گرگانی دصحبتونو څخه‌یی فیض اخیستی دی .

دشیخ دکشف المحجـــوب دمطالعی څخه څرگندیږی چی‌ټـول ظاهری متداوله علوم یی خـــلاص‌کړی‌اود باطنی علومو دزده کړی کمال درجی ته‌رسیدلی دی.

شیخ دخپل ژوند زیاته بـــرخه‌پـــــه سیر اوسیاحت تـیره‌کړی تـــرکستان ، شـــام، عـــرا ق آذر بایجان ،ایران لیدلی اود خپل سفر دگذارشاتو په‌وخت کـــی‌یی یادوی، شیخ‌علی هجو یـــری مجرداو واده یی‌نه‌وو کړی خو یووخت دعشق په‌لومه بند سوی‌وو دفراق ناوړه زار ترگی اودمحبوب‌دبی اعتنائیو څخه یی شکایتو نه کړی خو داځرگنده نه‌ده چـــی دمحبت دلومی څخه ځرنگه خـــلاص سوی‌دی. شیخ دخپل مرشد شیـــخ‌ابوالفضل محمدبن الحسن السـر خسی په‌امر لاهور ته‌تللـــی خــــودکشف المحجوب دلیکنی له‌مخـــی په‌لومړی سرکی په‌لاهور کـــــی‌خوشحاله نه‌وو لکه چی‌وایی :—

دگنج بخش دلقب دورکړی په‌هکله داسی روایت دی؛ هغه‌وخت چی‌خواجه معین‌الدین حسن‌سنجری‌چشتی لاهورته ولاړ دده پرمزار یی چله وکښله اود شیخ دروح‌دفیض څخه ښادسو اوکله چی‌یی دمزار څخه رخصتیدی دابیت یې په‌لوړ آواز وایه ؛ـ

گنج بخش هردو عالم‌مظهر نورخدا
کاملان راپیر کامل ناقصان را رهنما

اودغه وروسته په‌شیخ گنج‌بخش مشهور سوخودغه روایت دغور وړدی اوخپله شیخ په خپل‌اثر (کشف الاسرار) کی‌په‌دی هکله داسی وایی ؛ـ

(... ای‌علی ! خلق تراگنج‌بخش میگویند وتوجه‌ای پیش‌خود نداری این داعیه‌را دردل خودراه‌مده ورنه این‌غرور محض باشد گنج بخش فقط اوست باوشر کمکن ورنه تباه شوی بیشک‌او خدای واحد است واورا هیچ‌شریکی نیست.)

ددغی لیکنی څخه څرگند یږی‌چی‌شیخ په‌ژوند کی په‌گنج بخش مشهور وواو اودغه لقب یی‌نه‌خوښاوو نود خواجه معین الدین چشتی روایت صحیح ندی .

داتا گنج بخش دصفری‌دمیاشتی په۱۹په (٤٦٥) ه ق‌کی په‌لاهور کی وفات اوهلته ښخ شو . تذکره شعرای پنجاب .

دعلی شیخ علی الهجویری عرف‌داتا گنج بخش رحمة‌الله علیه لاهوری تر سرخط لاندی دده په‌پیژندنه کی داسی لیکی:ـ

(جلاب وهمجویر اسم دوکوچه‌شهر غزنین بود حضرت داتاگنج به‌اسم علی هجویری وپدربزرگوارایشان باسم‌عثمان الجلابی‌معروف

بودند ایشان ازاهل سنن بودنـدودرفقه پیروی ازامام ابوحنیـفه میکردند درتصوف درسلسله‌جنیدبغدادی بودند وبردست حضر ت ابوالفضل محمد بن‌حسین الحنفی‌بیعت نمودند کتـاب کشـف المحجوب را بامحبـت خاصـی‌نوشتند ومطالبی در پـیرامـون تصوف شامل آن ساختند کتـا ب‌دیگری به‌اسم کشف الاسـرار در باره احوال زندگانی مبارکه خـودنگاشته اند بنابه دستور مر شـد خود ازغزنی به‌لاهور آمدندچنانکه‌درکشف الاسرار میفرمایند. چون در هندوستان آمدم نواحی لاهورراجنت مثال یافتم توطن وسکونت اختیار نمودم.)

دشیخ علی هجویری مشـهـور تصنیفونه دادی ؛

۱ـ وجدان چی‌په (دیوان عالی)مشهور دی اواوس ورك دی.

۲ـ منهاج الدین چی دتصوف‌په طریقه کی دی‌اود اهل صـفه مناقب یی یوپه یوه ذکرکړیدی.

۳ـ کتاب الفناء والبقاء (پـه تصوف کی)

٤ـ اسرار الخرق والمو منات.

٥ـ کتاب البیان لاهل العیان.

٦ـ بحر قلوب .

۷ـ الرعایه لحقوق الله.

۸ـ کشف المحجوب .

کشف المحجوب دشیخ مشهورکتاب‌دی چه‌په‌فارسی‌نثریی لیکلی اوپه‌هغه کی دصوفیانو دعقاید واو احوالاتو اوفرقو په‌هکله پـوره خبرې سوې دغه کتاب که څه‌هم‌په‌لاهور کی یوځل چاپ سوی‌اوپه

فسکی) په تصحیح اواوو فهرستونو اویوی روسی مقدمی سره دشوروی اتحاد په لیننګراد کښی چاپ کړ.

دلاهور دنسخی له‌مخی دغه کتاب یوه مقدمه او۳۹ بابونه لری خود لیننګراد په‌نسخه کی دلاهوردنسخی ځنی اشتبا هات لکه یوه موضوع چی په بیلو بابونو کی‌راغلی رفع سوی‌دی.

کشف المحجوب دسبك له‌مخی‌دلومړی دوری فارسی نشر سره شباهت لری دعربی پخوانو لغاتواواصطلا حاتو علاوه شیخ په دغه اثرکی نوی اصطلاحات هم وضع‌کړی چی وروسته دتصوف نورو آثارو هغه رواج کړی دی.

سفینت الاولیا دشیخ هجویری‌په‌هکله داسی لیکلی :ـ

(... وایشان صا حب صحو بودند چنانچه درین باب میفرما- یند که شیخ من‌جندی مذهب بودومیگفت که‌شکر باز یگاه کودکان است وصحو فناگاه مردان‌وقتیکه‌علی عثما ن الجلابی ام برموافقت شیخ خود که‌کمال حال صاحب‌سکر صحو باشند وکمترین درجه اندر صحو ازرویت باز مانـد که‌بشریت بود پس صحوی که آفت نماید بهتر ازسکری که‌عین آن‌است بود مرید شیخ ابوالفضل بن‌حسن الختلی اند وایشان مریدخضری وایشان مرید شیخ شبلی اند وشیخ ابوالقاسم گرگانی وشیخ ابوسعید ابوالخیر وشیخ ابوالقاسم قشیری وبسیاری ازمشایخ رادیده اند وحنفی مذهب بوده وجلاب وهجو یر دو محله‌است ازمحلات شهرغزنین که‌انتقال کرده اند اینکه بدیگر وقبر والـدبزرگوار ایشان در غزنین است

نماز گذار دادند وبعد ازنماز بـه‌حاضران گفتند که‌نگاه کنید کـه کعبه بکدام سمت است حجابها ازمیان برخاسته وکعبه محازی نمود ار گشت وقبر ایشان موا فـــق‌مسجد ایشان است وقبر والده ما جده نیز د■غزنین است متصل‌تاج‌الاولیا که‌حال پیرعلی هجویر اند وخانواده زهدوتقوی بوده..)(۱)

# خواجه عبدالله انصاری

عبدالرحمن جامـی په نفـحات‌لانس کی دخواجه عبدالله انصاری له‌خولی داسی لیکی :ـ

(ولادت من‌روز جمعه بوده‌است‌دروقت غروب آفتاب الثانی مـن شهر شعبان سنه ۳۹۶ ربیـعی ام‌یعنی دروقت بهار زاده‌ام بهـــار راسخت دوست دارم آفتاب بـــه‌هفدهم درجه ثور بوده است‌که‌من زاده‌ام هنگامیکه به‌آنجا برســـدسال من‌تمام گردد وآن میان‌بهار وقت گل وریا حین ).

دخواجه عبدالله انصاری کـوردهرات دحصار پـه کوڅه کـی‌وو پلاریی چی‌ابومنصور محمدنومیده‌ددکانداری په‌کار لگیاوو دنســب سلسله یی ابوایوب خالد ابـــن‌زید خرزجی چی درسول صـلعـم دمخلصانو څخه وو رسیږی هـغه‌وخـت چی‌یی مدینـی ته هجرت وکـړ دده په‌کورکی او ســـیدرسول‌الله صلعم دد غـه مخلـــص دزامنو څخه دیوه نوم ابو منصورمحمد انصاری واودخراسان دفاتح احنف بن‌قیس د حضرت عـثمان‌دخلافت په‌زمانه کی هرات تـــه

## غزنی

خواجه عبدالله انصاری دخپل پلار دارشاداتو او توجهاتو څخه ممنون وو لکه چی وایی:ــ

من هفتاد واند سال علم آموخته ونوشتم ورنج بردم دراعتقاد اول آن همه ازپدر خود آموختم لیکن (از) قرابود صادق ومتقي وباورع که کسی آن چنان نه نتوانستی بود ونتوانستی ورزید.)

جامی په نفحات الانس کی دخواجه عبدالله انصاری له خولی دکوچنیوالی دزده کړی په هکله داسی لیکلی :ــ

( اول مرا درد بیرستان زنی کردند، گفتند: زبان دارد چون چهار ساله شدم مرا در دبیرستان مالینی کردند وچون نه ساله شدم املا نوشتم ازقاضی ابامنصور واز جارودی وچهارده ساله بودم که مرا به مجلس بنشاندند ومن درد بیرستان ادیب خرد بودم که شعر میگفتم چنانکه دیگران رابرمن حسد می آمد ...)

دخواجه عبدالله انصاری دنهه کلن سن مشهور استادانو څخه یو مشهور محدث اوفقه قاضی ابومنصور چی په دغه وخت کی اتیا کلن وو اودیرش کاله یی قضا کړی وه اود هرات دټولو شافعیانو شیخ اومرشد وو اوپر سلطان محمود غزنوی ډیر گران وو فاطمی خلیفه د۴۰۳ه په ذی القعده (۱۰۱۳) مسیحی کی دخپلی خوا یو قاصد قاضی ابومنصور ته واستاوو چی دفاطمیانو مذهب ته را واوړی سلطان محمود غزنوی دهغه قاصد وواژه اودهغه غاطره یی قاضی ابو منصور ته ددغه پیغام سره ولیږه .(این جانور را

غزنوی په هرات کی په ٤١٨ هـ (١٠١٨م) کـــی د معتزله وو مجازاتو شروع وکړه اوپه دغـــومجازاتو قاضی ابومنصور او دده شاگرد خواجه عبدالله انصاری ډیرخوشحاله وو جاوردی هروی چی دقرآن حافظ اواحادیث یی دنیشاپور ،همدان، اصفهان اوبـصری داستادانوڅخه زده کړیوودخواجهعبدالله بلاستاد وو چی خـوا جه عبدالله انصاری هغه دامـام اهـلشرق پهدرانه نوم یادوی ۰

خواجه عبدالله انصار ی ډیـرهقوی حافظه درلـوده دری لـــکه حدیث، یولك عربی اشـعار او دمشایخو پهزرونو مقولی یی پــــه یادوی ۰

څه وروسته یی پلار ابومنصوردخپل پیر اومرشد حمز ه عقیلـی دلیدلو دپاره دخپلی کورنی سرهبلخ تهولاړ اوپلاریی هلته په٤٣٠ (١٠٣٩) کی وفات سو.

دځوانی پهمرحله کی (٤١٠ ـ٤١٧ ـ١٠١٩ـ ١٠٢٦م) دخواجه عبدالله انصاری دری اســتادان ددیحیی ابن عمار طاقی سجستانی بشری سجزی دډیری یادونـــــیوړدی.

په طبقات حنابله کی راغلیدیچی شیخ الاسلام خواجــه عــبدالله انصاری په ٤١٧ هـ ـ١١٢٦ م کیدحدیثو ،فقی دزیاتو مطالعا تــو دپاره نیشاپورته ولاړ جامی پــهنفحات الانس کی دخواجه عبدالله انصاری له خـــولی ددغه ســـفردخاطراتو په هکله لیکلی :ـ

( یكمنزل ازنیشا پور تادربادکه (مانده بود) باران شدیدمیآمد من دررکوع میرفتم وجزوه هایحدیث به شکم باز نهاده تـاترنه

چی خواجه عبدالله انصاری دسلطان محمود داجراآتو اونظر اتو څخه ښه راتله خوددربار دمخا لفتو نــواودسیسی څخه یی هر کله ځان گوښه ساته نه یی دغزنو یانو اونه یـــی دسلجو قیانو سره ځان مستقیـــما گډاوه خواجه عبدالله انصاری پــه ۴۲۳ــ ۱۰۳۲م دهرات دنومیالی شیخ اومتقی امام ابوالفضل ابــی سعد چی په دی وخت کی ۸۰ کلن وو په ملگرتیا دحج فـــریضه اداکړه .

خواجه عبدالله انصاری په ۴۲۴ (۱۰۳۳) بیادحج دادا کولو او د اسلامی مشایخو اوعلـماوو ســره دلیدلو په نیت دنیـــشاپور دلاری حرمینو ته وخوځید اوپه نیشا پورپورکی یی دابن باکویه په خانقاه کی ځان ونیوی اوهلته دابو سعیـــدابوالخیر سره شناخته سو اوشاید هغه دخرقانی دلیـدلو د پـــاره استولی وی په نفحات الانس کې ددغه سفر دحالاتو په باره کـــی دخواجه عبدالله انصاری له خــولی داسی لیکلی :ــ

(عزیمت حج الاسلام کـــردم تاری رفتم وقافله را دران ســـال بار نبود درباز گشـــت به صحبت خرقانی رسیدم مرا بدید گفت (در آی من ماشو که تو ) (یعنی معشوقه تو) ازدربارآمدی جزالله تعالی نداند که این چه بود که وی گـفت ازغیب وپراز کرامت وی آن تمام بود که مرا گفت (از دریاآمدی )واز علم وی آنکه گفت واینك مـــی خورد ومیخسپید چیزی دیـــگـــراست (چون) این نـــحو ســـخن بشنیدم خرقانی من بودم. وی مرا تعظیم که میداشت کسی را نمیداشت درمیان سخن میگفت (بامن مناظره مکن! توعالمی ومن جاهل :) بـــا

وآب چون‌جوی ازدوچشم وی‌میرفت وبامن سخن میگفت...)
دالهی قضا څخه خواجه عبدالله‌انصاری په‌دغو دواړو سفرو نو
کی حج ونه کړ اوپه نتیجه کی‌یې‌دلویو علماوو اومشایخو سره
ولیدل .
خواجه عبدالله انصاری په ٤٢٥هـ ق ١٠٣٣ کی‌چی ٢٣ کلن‌وو په
تدریس اوارشاد لگیاووادنبازانوجماعت باندی راټول وو.
د٤٣٥ ـ٤٢٥ـ ١٠٤٣ـ١٠٣٤ چی‌دغزنویانو پر ځینو ملکو باندی
ترکمنانو یرغلونه کول او هرات‌هم ددغو یرغلونو څخه خلاص
نه‌وو .
دخواجه عبدالله انصاری په‌ژوندانه کی دالومړی ځله‌وو چی
دی مسعود په‌هرات کی‌خپل‌حضورته ور وغوښت او ورته وی‌ویل:
این توهستی که‌گفته ای که‌خدای عزوجل‌درآتش قدم‌مینهد؟
خواجه عبدالله انصاری یی په‌ځواب کی وویل :ـ
عمر سلطان بزرگ دراز بادخدای عزوجل ازآتش آسیب نمی
بیند وآتش اورا آسیب نمیرساندوپیامبر اودر باره او دروغ
نمیگوید وعلمای این امت به‌آنچه ازپیامبر روایت میکنند بر
کلام‌وی استناد میکنند چیزی‌ازخود نمی افزایند.) سلطان
مسعود په دغه ځواب خوښ سواوهغه یی په‌عزت بیرته رخصت
کړ.
سلطان مسعود دا شعریانو په‌تحریك چی په شافعیانو کی یی
نفوذ کړی‌وو اومعتزله چی ځنی‌حنفیان یی ترنفوذ لاندی راوستی
خواجه عبدالله انصار یاستجواب کړ خومعتز له‌وو او

بندی واستاوه اویو کال یـی هلته په بندکی تیر کړ اوپه ٤٣٩ کـی
دبند څخه خلاص سو اوپه هرات کی یی په تفسیر شروع وکړه بیایی په
حدیث په تفسیر کی یی لومړی ځله دشریعت اوبیادطریقت بیان کاوو
د٤٤٥ (١٠٥٣) کال په سر کی سلطان فرمان صادر کړچی ټـول
اهل بدعت دممبر ونو اوامامتونو څخه راکښته کړی په دی سلسلـه
کی حتی هغو حنفیانو چی دمعتزله وو سره آشنایی درلوه اوهغـــو
حنبلیانو چی خدای ته یی بشری صفتونه مجسمول حتی شافعیان
شامل وو اوپه نتیجه کی خـواجـه صاحب ددښمنانو دآزار اودسیسو
څخه خلاص شو. په دی وخت کـــی ده خپل مشهور اثرد (ذم الکـــلام
واهله) په نامه ولیکلی اود اهـــل کلام او اشعریانو اومعتز لـــه
ضررونه یی یو په یوه پــه اسلامی عقایدو کی ښکاره کړل اوعقلانـی
مناظریی خطرناکه وبللی خو خپل حامی نظام الملك ته یی بیا رجـوع
وکړه چی خواجه عبدالله انصاری له هراته وباسی اودهغه په امـــر
بلخ ته تبعید شوخو دغه تبعید یی زیات وخت ونه نیوی اود مشهور
صوفی شیخ همر لبنانی په شفاعت له تبعیده آزادسو او بیرته هرات
ته راغی (٤٥٨ ـ ١٠٢٢م که څـه هم ددغه وروسته بیا هم مخالفینو
دده آزاره لاس وانخست او الـــپ ارسلان یی ورته خښماوه خو کله
چی الپ ارسلان ته دخواجه صاحب دعقیدت او محبت صفا معلو مـــه
سوه نوځو چه دی په اقتدار کی وو چا آزار ورته ونه رساوو اودبغداد
خلیفه القاسم بامرالله دده دعـــزت وقار په نسبت چوخـــه ورتـــه را
واستوله په دی وخت کی خـوا جه عبدالله انصاری صاحب اویا کـــلن
سړ ته رسیدلی وو .

اوسیدی دحکمرانانو اوحاکما نواوبډایانو تحفی بەیی ردولی اود نیا بەیی نەخوښوله جامی پــەنفحات الانس کیدده دخولیداسی وایی :

( ... هرگز درهمه عمر خــودالله تعالی مرانیم روز درطلــب دنیا ندیده واکنون برمن میگشایندامامرا ازآنچەمیدهند اگرنه بپذیرم کافر باشم واگر آنرا بردلمنهیچقدر وخطر باشد کافر باشم تا بــه آنوقت کەازآن نزیستم وبایســتآن ازمن نبردند آنــرا برمـــن نگشادند واگرملك سلیمان باشــدمرا ازآنچه؟ هرچیز کەمن دیــده بوده مرا خوش آمده بودبایســتەوبروز گار بچشم دل من گذشــته بود ،آنمرا نقد میکنند کەمیگویم

این آناست کەفلان وقت دیدەبودم وبردل منگذشته بودآنوقت که مرا بایست آن بودند واکنونمیدهد .)

خواجه عبدالله انصاری صاحبپه ٤٧٣ (١٠٨١ ـ١٠٨٠) کیپه سترگو ړوند سو أوتدریس یــېنەسو کولای اوبیانات یی دخــولی شاگردانو او مخلصینو لیکل شیخالاسلام خواجه عبدالله انصاری په پەدی وخت کیمنازل السائر یــندخپلو شاگردانو اومریدانو دپاره تشریح اواملاکړ په ٤٧٨(١٠٦٧)کی چی یو فلسفی متکلم دهرا ت ځخه تیریدیاوخپلعقایدییخپرولشیخ الاسلام پەخبر سو اود خپلو مریدانو سرەیی دهغه داو سیدلوځای وسوځاوو هراتیان چی دبلوا اوعمومی نارامی ځخه ویر یــدلاشعریانو هغه تحریك کړل اوپــه نظام الملك باندی یی دهغەدوتلوامر صادرکړ چیپه نتیجه کیشیخ الاسلام پــوشنج بیامرو او پــەآخرکی نیشاپور طوس اوسرخس

دالحجی په ۲۲ (۱۰۸٦) دمارچ په۸ د۸۵ کالو په‌عمر په‌هرات کـې وفات سو (۱).

## شیخ ابو سعید ابو الخیر رحمت الله علیه

نوم‌یی فضل‌الله کنیت یی ابـوسعید ابوالخیر په‌کال ۳۵۷(۹٦۷) کی‌په میمنه زیږیدلی دی سفینت‌الاولیا ددارا شکوه اثرپه ۱٦۲مخ کی چی په ۱۸۷۸ ق‌م کی‌په‌لکنهو کی چاپ‌سوی دده په‌معرفت کـې وایی :

( نسبت ارادت ایشان بـــه‌شیخ ابوالفضل بن‌حسن سرخسی وایشان مرید ابونصر سـراج وایشان مرید ابومحمد میرتعش و ایشان مرید سید الطایفه حضرت‌شیخ جنید بغدادی وبعد از فوت پیر ابوالفضل خرقه از شیــــخ‌عبدالرحمن سلمی پوشیده انـــد بجهت حل بعضی مشکلات یکسال‌باشیخ ابوالعباس قصاب امــلی بودند..

شیخ رباعیات لری چی دااسرارالتوحید دلویوادبی اوعر فانـــی خزانو څخه دی دشیخ ابوسعیدپرپلار سلطان محمود غزنوی ډیـــر ګران وو په‌مهینه کی‌یی د خپـل‌سرای پرډیوالو اوسقـــف باندی دسلطان محمود غزنوی القـــا ب‌جاه وحشم توپخانی اوپیلان نقش کړی‌وو شیخ ابوسعید پلار تـــه‌وویل چی په‌دغه‌سرای کی یـــوه خونه راته جوړه کړه چی په ماړه‌ولری اوڅوك تصرف پکښی ونـه کړی پلاریی همدا شانی خـو نـه‌ورجوړه کړه اوکله چی‌یی پلستره

۱ــ زندګی خواجـه عبـــدالله‌انصاری هروی اثر ... [illegible]

وله شیخ ورته وویل چی پـــــردیوا لــونــو باندی یــی الله الله
ولیکه پلاریی ځنی وپوښتل چــی څله شیخ ورته وویل هرڅــوك دی
پرخپلو دیوالونو باندی دخپل امیرنوم ولیکی شیخ هم دسلطان محمود
سره روابط اوعلایق درلودل هغه وخت چی دشیخ مرگ نژدی ســو
خپل یوه مریدته یی وویل: غزنــی ته ولاړ سه اوپرسلطان یی ســلام
وایه چی دری زره دیناره در کړی هغه زماپور وړو ته ور کــړه کله
چی شیخ وفات سوسلطان دهغــه وصیت په ډیر احترام پر ځای کړ
شیخ دشعبان په څلــــورمه ٤٤٠(١٠٤٩) دجنوری په ١٢ په معصینه
کی وفات سو نکلسن دده په باره کی په خپل اثر (داسلامی تصوف په
باره کی مطالعات )چی په١٩٢١ کال دلندن په کیمبریج کی چاپ سو
دده دپیژندنی په هکلــه پـــو ره معلومات ورکړی اود خرقانی سره
یی دده دمناظرو په هکله پـــوره څیړنی کړی چی ددغو مناظرو څخه
دشیخ فرید الدین عطار په تذکرت الاولیا کی هم راغلی دی.

# شیخ ابو الحسن خرقانی

نوم یی علی بن جعفر دقزو یــن دخرقان دی چی په ٣٤٨ کـــــی
زیږیدلی اوپه تصوف کی دبایزید بسطامی صاحب پیرودی وایــــی
دداسی چاسره هیڅ خبری مه کوی چی ته وایه خدایه اوهغه بل څـــه
وایی (١)

خواجه عبدالله انصاری دابــوالحسن خرقانی صاحب سره چــی
د( ٨٠ کالو پـــــه سن ؤلیدلی وواوپه ده کی یی دمحبت اوخـــدای

نه‌وو لیدلی په‌حقیقت نه پوهیدم‌ تل‌می دغه‌په هغه گداوه یعنی
نفس په‌حقیقت کی.)

کله چی سلطان محمود غزنوی‌دخوارزم دنیولو څخه فارغ سو
دخرقانی دکراماتو او خدای‌پیژندنی څخه پوره خبرو نودهغه
دلیدلو دپاره خرقان ته‌راغی‌دیوی‌دوی ورځی استراحت کولو
وروسته ځوك يی شیخ ته‌واستاووچی دده دلیدلو دپاره راسی اوکه
نه‌راځی دغه آیت ورته ووایه (اطیعوا الله واطیعو الرسول واولی
الامر منکم ) هغه چی شیخ ته‌ورغی شیخ عذروغوښت بیا یی
آیت ورته‌تیر کړشیخ ورته‌وویل؛

زه دومره په‌اطیعوالله مصروفه یم‌چی اطیعوالرسول ته لانه یم
رسیدلی څه به‌ځای وی اولالامر ته‌بیا سلطان محمود غزنوی خپل
سلطنتی کالی په‌ایاز واغوستل‌اوخپله دهغه دیاورانو په‌څیر په
ایازپسی وروسته رهی سوهغه‌وخت چی دشیخ حضورته ورسید
هغه دایاز استقبال ونه کړ اومخی‌ته یی ولاړنه سو دسلطان لاس‌یی
ونیوی اوورته وی ویل هغه ځوك‌چی‌دجهان پر خلكو وړاندی وی
هغه ته یی ،ته یی وړاندی راسه‌او دلته کښینه سلطان په تعجب
کی سو اوکښینوست او څو ساعته یی دشیخ په‌حضور کی تیر
کړل دده دهدایاتو اومو عظو څخه‌مستفید سو هغه وخت چی‌ولاړیدی
دزرو غوټه یی شیخ‌ته کښیښوده‌او هیله یی‌وکړه چی‌قبوله یی کړی
شیخ داوربشی ډوډی چی ورته‌پرته وه سلطان ته‌یی وړاندی
کړه‌چه ویی خوری سلطان هرخومره چی زیار ویوست وی
خوری ترستونی یی نه‌تیریده نوشیخ ورته.وویل څرنگه چی دغه

شیخ دمحرمی په‌لسمه ٤٢٥ (١٠٣٣ ددسامبر په ٥) وفات‌سو ده دبایزید بسطامی‌یوه پیړی‌وروسته ژوند کاوو اود خرقان په څو فرسخی کی‌خاوروته سپارل‌شوی‌دی .

# شیخ یحیی بن عمار سجستانی

نوم‌یی یحیی دعمارزوی دسیستان وو دقرآن په تفسیر کی یی لوی لاس درلود ذهبی په‌سیروگی راوړی چی خواجه عبدالله انصاری ویل :-

یحیی بن‌عمار پاچاوو دعلم په‌لباس کی.

جامی په نفحات الانس کی‌وایی (... وقتی خواجه یحیی عمار بیمار شده بودچون بهترشدمجلس‌کرد بر کسی خود غلام دست وی گرفته بودبر منبر برد... چنانکه‌مصطفی را صلی‌الله علیه وسلم پادرکشیدند ابوبکر بجای وی‌نشست... یحیی عمار میگفت :

( مراپای در کشید نـد عبدالله‌انصاری بیابد وبجای من بنشیند وبر دماغ ملحدان ومبتد عیان‌میزند پس اشاره بسوی عبد الله که درپای کرسی بوادکرده گفت‌عبدالله این کودك است شیخ عمو درین مجلس حاضر بود بعد ها باکمال فخر واقعه رابه یادعبدالله دوست جوان خود میداد.)

خواجه عبدالله انصاری کله‌چی‌زوړ سو ویل به‌یی :-

اگرمن ویرا ندید می دهان‌باز ندانستمی کرد یعنی درتذکیر وتفسیر.

# خواجه ابو عبدالله طاقی

خواجه ابوعبدالله محمد بـــن‌الفضل طاقی سجستانی دسیستان دطاق دقلعی دی اوپه هرات کــې اوسیدی خواجه عبدالله انصـــاری ده‌ته ډیر ارادت او‌اخلاص درلود‌امکان لری چی خـــواجه عبـــدالله انصاری شیخ طاقی ســجستانـــی‌لومړی ځل دشیخ‌عمو په‌کور کــې لیدلی وی دغه شیخ‌دعبدالله پـــر‌روح او فکردومره دروند او ژور تاثیر واچاوه چی یوه ورځ شیـــخ‌طاقی عبدالله ته وویل سبحان الله! هغه څونه نوردی چی الله‌تعالی‌ستاپه‌زړه کی ځای کړیدی. خوا جــه عبدالله انصاری دشیخ طاقی پدغه‌مطلب ترڅلوېښتو کالو نه‌پوهیدی خو دومره یی حس‌کړه چی زړه‌یی‌روښانه سوی‌دی اوخپل مرشد یی مونډلی دی څو کاله وروسته چـــی‌یی خرقانی ولید همدا شانی یـــی حس‌کړه عبدالله‌انصاری دحنبلیانو‌دعقیدی اوتفکر دطرز دپو هیدلو سره علاقه درلوده نوهمدغه شیخ‌طاقی حنبلی‌وو چی‌ده‌ته‌یی دحنبلی مذهب اساسونه وښودل لکه چی‌وایی :ـــ

(اگر من اورا ندید می اعتقادحنبلیان ندانستمی)

نوشیخ طاقی دبد عدتیانو پــه‌مقابل کی دخواجه عبدالله انصاری مبارزه تجهیز کړه په‌خپلو‌رباعیاتو کی دده په‌هکله داسی وایی :ـــ

ای آنکه یگانه گـــشته درآفاق
از جـــان بتواند اهل عرفان مشتاق
کس نیست هما نند تو درفقرو فنا
گشتت‌ازاان نام خوشت خواجه طـــاق

شیخ طاقی په صـــفره ٤١٦(١٠٢٥ ـــاپریل) وفات سو اوپه هرات کی خاوروته وسپارل ســوسفینت الاولیایی داسی معر فـــی کوی :ـــ

نام ایشان محمد بن‌فضل بـــن‌طاقی سجستانی البردی است‌مرید

## دغزنی مشهور مزارات

په غزنی کی دافغانستـــان اوسیمی دمشهورو عارفانو، مشایخو اونومیا لیو ملـــی اوسیاســـی شخصیتو نو مرقدونـــه دی اود اولیاوو داوسیدلو دیوازنی تاتوبی په حیث شهرت لری. دغه ښار که څه هم څو ځله ویران او خـــرابه سوی اونفیسه صنایع، آبدات او فرهنگی آثار یی ترخاورو لاندی سوی اود عرفاوو مرقدونه شنختی یی تیت اوپرك اوکنډ وکپر سوی دی خو ددی سره بیاهم هغه څه چی د کیندونو اوفرهنگی تلاښونو په نتیجه کی په لاس راغلی ددغه ښار دتاریخی او ثقافتی لـــوړ حیثیت ښکارندوی دی.

دلته دریاض الالواح اود هغه دتکمیلو اوځنی نورو آثارو څخـــه دغزنی مشهور مزارات ذکر کیږی

## دسلطان محمود زابلی روضه

دی دافغانستان لوی پاچا(۳۸۷ــ۴۲۱) اودتاریخی کار نـــا مـــو مصدروو (۱)

مقـــبره یې ډیـــره ښکلـــی او تـــاریخی جوړه سوی دلوحـــی پریوی خوایی په کوفی خط دغـــه عبارت لیکلی سوی دی:ــ (غفرانا

من الله للاء میرالاجل السید نظام‌الدین ابی‌القاسم محمـــود بـــن سبکتگین غفرله.) دلوحی بلی‌خواته په رقاع خط دغه‌لیك سوی‌دی:ـ (توفی رحمت‌الله‌علیه ونورحضرته‌وبیض وجده عشیته یوم‌الخمیس لسبع بقین من‌شهر ربیع الاخــــرسنة احدی وعشرین واربع مائتــه سنه (٤٢١).

دسلطان محمود زابلی مرقد که‌څه‌هم دزمانی حوادثو اوناملایماتو وران کړی‌وو خو دامیر حبیب الله‌سراج الملته والدین په‌امر پـــه ١٣٤٢کی بیرته ترمیم او ښکـلی‌سو. (١)

## دامیر ناصر الدین سبکتگین مرقد

دی لومړی پاچادی‌چی غزنی یی‌خپل مرکز وگرزاوو په ٣٦٧ کې پرتخت کښینوست اوپه ٣٨٧ کی‌وفات سو دده مرقد دمـــنارو نـــو په‌خوا کی‌دغره په‌لمنه کـــی واقع‌دی اوپر قبر باندی یی په‌کوفی خط داسی لیکلی سوی دی.

( لااله الاالله محمد رســول‌الله‌العظمة الله لااله الاالله محمدرسول الله الکبریاء لله کل نفس ذایقته‌الموت ثم‌الینا یرجعون بســم الله الرحمن الرحیم من‌عمل صالحـــافلنفسه ومن اساء فعلیها الا میـــر الحارب الاجل ابومنصور سبکتگین‌رحمة‌الله علیه.)

## سلطان الوغ بیگ او سلطان عبدالرزاق

سلطان الوغ بیگ بن سلـــطان‌ابوسعید میرزا بن سلطان محمـــد بن میرانشاه بن امیر تیمور کورگان دی‌هغه وخت چی سلطان ابو سعیدمیرزا په٨٦١ ه کی‌دسمرقندڅخه راغی خراسان ،غزنی اودهند

دغزنی حاکم‌وو اوکله‌چی الـو غ بیگ په ۹۰۷کی وفات سوامراؤو
زوی یی‌چی عبدالرزاق نومیـدی‌ددی سره چی‌کوچنی وو پرتخـت
کنبیناوو اوخه موده ورو سـتـه‌ووژل‌سوددغو دواړو پاچاهانومړی
په‌یوه بقعه کی‌دی چی‌دسـلطان‌روضی ته‌نژدی ده اودقبر پـر
شنخته یی داسی لیکلی سویدی:ــ

سلطان الوغ بیگ:ــ

آنکس که بـود ورا بـصارت زین رقعه بیابـد او اشـار ت
تاریخ وفات شـاه الغبیـک خشبـاد بگفـتم این بشـارت

## زوی یی سلطان عبدالرزاق

شاهی که زفرقتش فلك گشته‌خراب
شمس‌وقمرازهجر شده در تب‌و تـاب
تاریخ وفـا ت آن شهنـشاه‌شهید
بر لـوح‌فلك نوشته باخیرو صـواب

## دسلطان ابراهیم‌مرقد

ظهیر الدوله والمله سلـطـان‌ابراهیم بن‌سلطان مسعود غزنوی
په ٤٥٠ کی پرتخت کنبینو سـتـاوپه ٤٨١کی مړسو قبریی دغزنی
شمال ختیځ ته‌دشیـخ علـی لالازیارت ته ورخرمه دی بقـه یـي
چه‌په محرابـی شکل جـوړه سوی‌ده پرهغی په‌کوفی او ثلث خـط

## لوړی سلطان مسعود

دبهلول دکلی دباغونو په منځ کی یی مرقد دی.

## دسلطان شهاب الدین غوری مرقد

دغزنی ددهک په کلی کی د ی اوددغه ستر لاربنود دخدمتو نو

پەویاړ په ۱۳۳۳ دثور په ۱۹ دمطبوعاتو لەخوا یوه ښکلی مــر

مرینه آبده پرجوړه سوه چیداسی باندی لیکلی سوی دی:ــ

الملك لله :سلطان شهاب‌الدین‌غوری غازی شهید :ــ

شهادت ملك بحروبر شهـا ب‌الدین

کزابتدای‌جهان همچو او نـپامـد یك

سوم زغره شعبان بەسال‌شش‌صدو دو

فــتـاددر ره غزنی بمنزل دهــك

## دمحمد شریف خان بقعه

دغزنی دمنارو ختیځی خــواتەدبهلول دانا زیارت ته ورڅر مـه

یوه نقاشی ښکلی گنبده سته چــی‌دمحمد شریف خان پەنامه یادیږی

دی‌دامیر یارمحمد خان زوی دی‌چی‌هغه دجــلال الدین اکبر مغو لــی

پاچا وزیروو اوپه ۱۰۱۲ کــــی‌وفات سویدی ده پەخپل ژوند کی

دغه بقعه دخپلی کورنی دمــړو دپاره جوړه کړی‌وه‌چی ددروښځو

اودوو نارینه قبرونه پکښی دی.دنارینه دقبرونو شنختی یی داسی

دی :ــ

صاحب سیف والقلم ممهد احکام السلطنه مشید ارکان المملکته
عضد الدوله القاهره یمن الملته الباهره حامی شرع والدین قدرت
الامرا والسلا طین عمده الوزراوالسلا طین والخوانین المختص
بالغفران الملك المنان محمدشریف خان بن المغفور المبرور
والمختص بعنایت الملك الغفورالموید بعنایت اله الصمد مولانا
یار محمد الغزنوی کان وفاته فی شهرربیع الثانی سنه اثنی عشر
والف ۱۰۱۲

# دوزیرفتح خان سرقد

دیدسردار یاینده محمد خانزوی پهختهمحمدزی دافغانستاند
مشهور وسیاستمدارانو او حربیشخصیتونو څخه ووچی وروسته
دشاه محمود سدوزی پهامرړونداوبیا ووژل سو (۱۲۳٤) اودعلیلالا
دقبر له څنگه خاوروته وسپارلسو.

# دشاهابوالفتح سرقد

دغه زیات دغزنی دبالا حصارختیځی خواته دښار پهمنځ کی په
یومسجد کی دی اوقبر یی دریمرتبی لری اود قبردډبری پرمخ
یی داسی لیکلی سویدی :-
(الشیخ الادل عمیدا لدولهابوالفتح مسعود محمد بن سور
غفرالله والوالدیه دلوحی عباراتوڅخه یی داسی ښرگندیږی چی دی
دوزراوو څخه وو اود سلطانشهاب الدین غوری پهوخت کی
وفات سویدی .

صاحباوغزنوی بهرامشاه په عصرکی اوسیدی زیارت یی دمحمود دروضیشمال لویدیځ په یوکیلومتری کی واقع دی داراشکوه په سفینت الاولیا کی دده دکرامتونوذکری کړی اود جلال الدین محمد اکبر کورګان پهامریی مرقدبیرتهجوړسویدده دمرقد دډبری پریوی خوا داسی لیکلی سویدی :ـ

(به عون عنایات الهی ویمندولتپادشاهی شهنشاه ملك رتبت فلك منزلت گردون بسطت کیوانرفعت بهرام شوکت سرپنجه شیر شکارش مفتاح امن وامان والشغهشمشیر آبدارش سرانجام اسباب نصرت راضمان سنان جانستانش بهاملا نصرمن الله بزبان تیزو پرچم لوای کشور کشایش بهنسایم فتح دولت وخرم شاهیش ضامن تشئید قواعد ملك وملتالموئد المجاهد ابو الغازی ابو الفتح جلال الدین محمد اکبرپادشاه غازی خلدالله تعالی ملکه جلال الدین محمد محمود ساعیتعمیر این بقعه شدفی شهور سنه اربع وستین وتسعماته ۹٦٤)

## دشمسالعارفین مزار

دغزنی درود لویدیځ ته دکابلاوکندهار دسړك څخه دوه کیلو متره فاصله لری دیپه شپږمی هپیړی کی دغوریانو دتسلط په وخت کیپه غزنی کیاوسیدی پهکراماتو اوخرق عادت مشهور دی دی دسلطان معزالدین سام غوریدشهادت یوکالدمخه مړدیدګنبدی په دننه کتیبه کییی داسی لیکلیسویدی:ـ لااله‌الاالله محمدرسول‌الله

# شیخ رضی الدین علی لالا

دغزنی دشمال ختیځ پهدوهنیم کیلو متری کیږی زیارت اود شیخ سعید زوی چی شیخ سعید دحکیم سنایی صاحب دآکازوی دی شیخ علی لالا دکبارو مشایخو څخه دی په نفحات کی راغلی چی دی د۱۲٤ شیخانو خرقه پوښه دی، دی دربیع الاول پهدریمه ٦٤۲ کی پهغزنی کی وفات سویدی دغه رباعی ددهدمنظوماتو څخه ده:ـ

هم جان بهزار دل گرفتار تـــوهست

هم دل بهزار جان خریدار توهست

اندر طلبت نه خواب دارد نهقـــرار

آنکس کی درآرزوی دیدار تو هســت

پرقبر باندی یی گنبده جوړهسویده چی دهند دتیموری حکومت ددوری څخه تجاوز نسی کــولا ی

# دبهلول دانا صاحب مزار

دغه مزار دغزنی پهشمال کـــی پریوی غونډی واقع دی کهڅههم بهلول دهارون الرشید پهوخت کی پهبغداد کی اوسیدی خودخلکوله خولی څخه یی همدلته زیارت دیځنی وایی چی دبهلول صاحب نـــوم امام محمد زاهدوو اوځنی وایـــی چی دی دسلطان محمود پهوخت کی اوسیدی اوهغه ډیـــر ارادت اواخلاص ورته درلود کهڅه هـــم دبهلول پهنامه یوشاعر هم ســـتهخوا شعاریی ضعیف اودده دفکـــر اوعرفان نمایندگی نهسی کولای.

# شیخ خواجه محمد لای خوار

اود سنایی دوفات دمخه په۵۰۰ هکی مړدی قبریی دخواجه بقـــال مزار ته نژدی دی.

## دشیخ عثمان زیارت

دیدشیخ علی دکشف المحجوب دمؤلف پلاردی چیدتاج اولیا مزار په اړخ کی پروت دی اود سلطـان ابراهیم غزنوی معاصر دی.

## حضرت تاج اولیا

دغزنی دجنوب ختیځ په یو کیلومتری کی پروت اوخلك یی دحکـیم سنایی صاحب خوریی بولی زیارت یی دخواجه لای خوار مزارته نژدی دی.

## حضرت شهباز قلندر

زیارت یی دغزنی دختیځ په دوه کروهی کی دی اومتولیـان یـــې دسید عبدالله دشاه ابراهیم دزوی په نامه پیژنی چی دقادری سلسلی ماذون دی دی دظهیرالدین محمـد بابرشاه معاصر وو.

## شاه سیر پالیزوان

دده مزار دغزنی په ختیځ کـې دشیخ وردك مزارته نژدی دی شاه میر دپخوانیو عارفانو څخه دی چی دشنختی لیك یی ضایع ســوی او یوازی کلمی اوایتونه یی پاته دی.

دجامع دبقایا وڅخه‌ده کوم پخوانی‌محراب چې‌په دی جامع کی نصب دی دمحمودی جامع دمحراب او نوڅخه یودی پدغه مسجد کی‌دسهار څخه بیاتر ماښامه لمونځو نه‌اوعبادتونه کیږی اوځنی یی زیارت اوننګولو ته‌ورځی دغه‌جامع مسجدکه څه‌هم اوس کوچنی‌دی اوپر شمالی اوجنوبی دیوال‌یی دوه‌ بروتوکران نصب‌دی چې‌په کوفی، معقلی اورقاع خط آیتونه شریف‌باندی لیکل سوی اود عباراتوڅخه یی داسی څرګندیږی چی‌دغه‌مسجد دظهیرالدوله‌سلطان‌ابراهیم په‌وخت کی‌جوړ سویدی (۱).

## دشیخ محمدسروزی زیارت

دغزنی جنوبی خواته دحکیم‌سنایی صاحب زیارت جنوب ته‌واقع اود لویو عارفانواومتصوفینو څخه دی چی مولانا جلال الدین بلخی په‌مثنوی کی‌هم‌دده یادونه کړیده‌پرلوح یی داسی لیکلی سوی‌دی .

(انتلقت الی جوار رحمة الله تعالی فی‌لیلة الجمعة السابع والعشرین من جمادی الاخر سبع وستین وخمسمئاته .

دی دسلطان شهاب الدین غوری‌په‌وخت کی وفات سویدی .

## دامام احمد حد اد زیارت

دغزنی په‌جنوب دحکیم سنا یی‌صاحب ختیځ جنوب ته‌پروت دی اوځنی خلك یی دمحد ثینو څخه ګڼی.

...رات الاولیا چې د محمد عالم په‌عالی متخلص دشیخ‌محمد صالح

ندای سمرقند ژوی‌چی خپله دغــه‌رساله یی‌په ۱۰۴۰ـ ۱۶۳۰ م‌کی په یوولسمه ه پیړی‌کی دغــز نی‌دغزنیخان حاکم‌دپاره لیکلی‌دغزنی دلویو مشایخو اواولیاؤ دذکــــروروسته خپله رساله داسی ختموی

(... چون اولیا واصــــفیا ی‌حضرت غزنین بیش ازحد وعــدد (ق ۱۲۲۲) بود اکثر ایشــان درذکر نبود مدح ایشانرا بیک‌رباعی اختصار وانحصار نموده :ــ

رباعی :ــ

عالی دل ماگرچی سراســروزراست

بر ســرزمقدسان شــاخ ســدر است

یك خضر جهانرا نبــودبیش‌دل

غزنیست که‌گوشه هزارش خضر است

---

## ADMINISTRATIVE BOUNDARY MAP OF GHAZNI PROVINCE (06)

## نقشه تقسیمات حدود اداری ولایت غزنی (۰۶)

### LEGEND

استارات مخصوصه :

| | | |
|---|---|---|
| International Boundary | —·—·— | حد بین المللی |
| Province Boundary | — — — | حدود ولایت |
| Woleswali Alaqadari Boundary | —·—·— | حدود ولسوالی و علاقداری |
| Paved Road | ═══ | سرک اسفالت شده |
| Province Center | ● | مرکز ولایت |
| Loywoleswali Center | ● | مرکز لوی ولسوالی |
| Woleswali Center | ⊗ | مرکز ولسوالی |
| Alaqadari Center | ○ | مرکز علاقداری |
| Loywoleswali Boundary | — · — | حدود لوی ولسوالی |



# قاموس اعلام

## ځایونه

### آ

| عنوان | مخ |
|---|---|

## ت



## ج

| عنوان | صفحه |
|---|---|
| جمع اولیاعروس الفلک جامع | ۲۶۶ |

## خ



## د

| عنوان | صفحہ |
|---|---|
| ش | |
| شامیر پالیز و ان زیارت | ۶۱۳ |
| شاجوی | ۲۸، ۸۳، ۱۳۳، ۱۳۳ |
| شاہ بہار میدان | ۹۵ |
| شاہ مقصود | ۲۸ |
| شاہ ابو الفتح مرقد | ۲۵۳ |
| شمس العابدین مزار | ۲۶۳ |
| شلگر | ۳۲، ۲۳۲ |
| شیر داغ | ۶۵، ۶۶ |
| شمالی امریکا | ۱۹ |
| شمالی سمت | ۶۵ |
| شیخ رضی الدین مرقد | ۹۶ |
| شیخ خواجہ محمد لای خوار مرقد | |
| شہباز قلندر زیارت | ۲۶۶ |
| شمالی قطب | ۲۰ |
| شوس | ۶ |
| شوروی اتحاد | ۲۳۶ |
| شیخ محمد سروزی زیارت | ۲۶۷ |
| شیخ عثمان زیارت | ۲۶۶ |

**عنوان** **صفحہ**

## دسړیو نومونه

| عنوان | صفحہ |
|---|---|

| عنوان | صفحه |
| --- | --- |
| ابومحمدعبدالله بن محمد | ۱۳۷ |
| ابو المظفر بن ابراهیم | ۱۳۷ |
| ابوعبدالله روزبه بن عبدالله | ۲۲۸ |
| ابو ایوب خالدبن زید | ۲۳۷ |
| احنف بن قیس | ۲۳۷ |
| ارسلان شاه | ۲۳۲ |
| امام الفضل ابی سعد | ۲۵۰ |
| ابو حامد الزاولی | ۸ |
| ابو نصر عتبی | ۲۱۹ |
| ابو سعیدعبدالحی بن ضحاک | ۲۱۹ |
| ابو الخیرخمار | ۲۲۰ |
| ابو الفرج رونی | ۲۰۷ |
| ابوسهل مسیحی | ۲۱۶ |
| ابو الحسن خمار | ۲۱۶ |
| ابو منصور ثعالبی | ۲۱۸ |
| ابو بکر ممشا | ۲۰۹ |
| ابو علی رودباری | ۲۰۹ |
| ابن عطار جریری | ۲۰۹ |
| ابو نصر عراقی | ۲۱۶ |
| ابو عبید | ۲۱۵ |

| عنوان | صفحہ |
|---|---|
| پیرمحمد بن معزاللہ بن مرتضی خان ترہ کی | ۱۵۴ |
| پیری تکین | ۲۰۰ |
| **ت** | |
| تا نسن | ۱۹ |
| تومانسکی | ۱ |
| تورہ سن | ۱۵ |
| توچی | ۱۹۳ |
| **ث** | |
| ثالث مسعود | ۱۹۹، ۱۹۳، ۲۴۲ |
| **ج** | |
| جریر ابن عطار | ۲۰۷ |
| جنرال محمد جان خان | ۱۳۹ |
| جولوغ | ۲۲۲ |
| جیوولہ | ۱۵ |
| **ح** | |
| حسین | ۲۰۵ |
| حسین قتیبہ | ۲۲۷ |
| حسن میوندی | ۲۱۹ |
| حسین بن علی میکال | ۲۱۶ |
| حضرت عثمان | ۲۴۷ |
| حضرت عیسی | ۵۷ |

| عنوان | مخ |
|---|---|
| حضرت قلندر شاه | ۲۱۱ |
| حکیم سنائی | ۱۵، ۲۳۵، ۲۴۱ |
| حکیم ابوالقاسم فردوسی | ۲۲۶ |
| **خ** | |
| خاس | ۱۵ |
| خسرو | ۱۱۰، ۱۹۷ |
| خوشحال خان ختک | ۸ |
| خوارزم شاه | ۲۱۵، ۲۱۶، ۲۲۰ |
| خواجه حافظ | ۱۹۷ |
| خواجه عبدالله انصاری | ۲۴۷، ۲۴۸، ۲۴۹، ۲۵۰، ۲۵۱، ۲۵۳، ۲۵۷، ۲۵۸ |
| خواجه ابو نصر مشکان | ۲۰۵ |
| خواجه ابو عبدالله طاقی | ۲۵۸ |
| خواجه‌مظفر شاه کرمانشاهی | ۲۰۷ |
| خواجه حسن القد | ۲۳۸، ۲۴۰ |
| **د** | |
| دولت شاه | ۲۲۲ |
| ویماشا | ۸۲ |
| دینگ هسبیند | ۲۰ |
| **ر** | |
| ربیع بن زیاد | ٦۵ |

| عنوان | مخ |
|---|---|
|  |

| عنوان | مخ |
|---|---|
| شیر علی خان | ۱۵۳ |
| شیخ علی هجویری | ۲۴۳ |
| **ص** | |
| صاحب خان غازی تره کی | ۱۵۳ |
| **ط** | |
| طاهربن‌حسین | ۲۱۹ |
| **ع** | |
| عادل سلطان | ۲۳ |
| عبدالرحمن‌جامی | ۲۴۷،۲۴۸،۲۵۷ |
| عبدالحی حبیبی | ۲،۸۱،۸۲،۱۹۵ |
| عبدالحمید | ۱۱۰ |
| عبدالله انصاری | ۱۱۰ |
| علاوالدین جهان سوز | ۱۱۴ |
| علا والدین حسین غوری | ۱۱۴ |
| علی احمد نعیمی | ۳ |
| عبدالرشیدبن محمود | ۲۲۰ |
| عبدالرحمن‌بن سمره | ۶ |
| علاوالدوله بن کاکو | ۲۱۷ |
| علا و الدوله محمد | ۲۱۶ |
| علی دیلم | ۲۲۷ |

| عنوان | مخ |
|---|---|

| عنوان | مخ |
| --- | --- |

| عنوان | مخ |
|---|---|
| هلموت همباخ | ۸۱ |
| هو وشیکا | ۱۹۵ |
| هیر ودوت | ۱۸ |
| هیو انتی سانک | ۷۰ |
| هیون تسانک | ۱۴ |
| **ی** | |
| یاقوت حموی | ۱۰ |
| یاری فرنکلن | ۱۹ |
| یعقوب غزنوی | ۲۰۷ |
| یعقوب لیث صفاری | ۱۹۴ |
| یعقوبی | ۸ |
| یمینی | ۴ |
| یوسف ناصر الدین شاه | ۲۳۴ |

| عنوان | مخ |
|---|---|

| عنوان | مخ |
| --- | --- |

غرونه

الف



ج

| عنوان | مخ |
|---|---|

| عنوان | مخ |
|---|---|
| **ع** | |
| علم‌غر | ۱۸۲ |
| **غ** | |
| غبر که | ۱۸۱ |
| غر غرک غر | ۷۱ |
| غر مانده « | ۱۸۱ |
| غوړکی‌غر | ۱۸۱ |
| **ف** | |
| فرغنه | ۱۳٦ |
| فیروزکوه | ۱۱۳ |
| **ق** | |
| قادغر | ۸۴ |
| قاڼی | ۱۲۰ |
| **ک** | |
| کاکړ نیکه | ۱۸۱ |
| کاکړ نیکه | ۱۸۱ |
| کرټ | ۱۸۱ |
| کلبوری | ۷۱ |
| کندا | ۱۸۱ |
| کوتکتوی | ۱۱۰ |
| کهنګک | ۱۷۱ |

| عنوان | مخ |
|---|---|



## قومونه

**عنوان مخ**

| عنوان | مخ |
|---|---|

## کتابونه

| عنوان | صفحہ |
|---|---|



ح

عنوان مخ





| عنوان | صفحه |
|---|---|

| عنوان | صفحہ |
|---|---|
| کتاب الوقت الابتدا | ۲۰۸ |
| کتاب وقوف | ۲۰۸ |
| کتاب الادیان | ۱۱۰ |
| کنز القافیہ | ۲۳۰ |
| کلیلہ و دمنہ | ۱۱۰ |
| گلشن الاسرار | ۲۱۱ |
| کشور لشکر و اقتصاد | ۲۱۷ |
| کتاب البیان لاہل العیان | ۴۵ |
| کتاب الفناو البقا | ۲۴۵ |
| کشف الاسرار | ۲۴۴ |
| کشف المحجوب | ۲۴۳، ۲۴۵، ۲۴۶ |
| کتاب الموجز | ۲۰۸ |
| کتاب عین المعانی | ۲۰۸ |
| کتاب مقالیہ علم الہئیۃ مایحث فی بسیط الکرہ خیال الکسو فین عن الہند | ۲۰۱ |
| کتاب التفہیم لاوایل صناعت التنجیم | ۲۰۲ |
| کتاب فقت اللغات | ۸ |

**ل**

| | |
|---|---|
| لطایف المعارف | ۲۱۸ |
| لو تانجلی | ۲۰۱ |
| کنز الرموز | ۲۴۱ |

# دغلطیو سمون

که څه هم زیات زیار و استل سو چی دغه کتاب بی غلطیو او یالږ وغلطیو را و وزی خو دغه ارمان سو په سر و نه رسیدی او سږی نه شی ویلای چی په د ی کار کی یو مخیز نقص په چاکی دی البته دغلطیو او اشتباه گانو په سرتکبید لوکی څه خپله لیکوال بیا تایپست او مقابله کونکی دهغه ور وسته مصحح او دچاپ فنی وضعی ته گو ته نیو لای سو او په و ر وسته پاته هیوادونو کی دا کار دومره عیب نه گڼل کیږی نو په همدغه معذرت د لته د ځینو مهمو غلطی گانو په تصحیح پیل کیږی چی سمدستی نظر جلبوی .

| ناسم | سم | مخ | لیکه |
|---|---|---|---|
| وبهند | و یهند | ۷ | ۷ |
| بی | یی | ۱۰ | ۵ |
| knowlede | knowledge | ۲۰ | ۱٦ |
| به | په | ۳۱ | ۷ |
| نشنه | نشته | | |
| ابو لقاسم | ابو القاسم | ۴۱ | ۲۱ |
| غز نی | غر نی | ۸۳ | ۱ |
| ۸۸۵۷ | ۲۸۸۵۷ | ۱۱۸ | ۴ |

په ۲۱۳ مخ کې د پنځمی لیکی اخیر ه شپږ مه لیکه اضافه و را چو له سوی ده حذف دی سی

| ناسم | سم | مخ | لیکه |
|---|---|---|---|
| گلو لو | گلوی | ۲۳۷ | ۱ |
| [illegible] | جان | ۲۳۸ | ۲ |



د سیف الدین لودین کتابتون
کتاب پر لیسې شمېره